

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان

دا هېواد به تل ځلیږي
لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** تاریخ

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د تاریخ دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اووم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای جَلَّ جَلَالُهُ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای جَلَّ جَلَالُهُ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# سرلیکونه

# لومړی څپرکی

د تاریخ بنسټونه (مبادي)

- د تاریخ د علم او ګټو په اړه څه پوهېږئ؟
- د تاریخ لیکونکو سرچینې څه شی دي؟
- آیا د زماني وېش په اړه په تاریخ کې معلومات لرئ؟
- آیا د نېټو بدلون او ډولونو سره آشنایي لرئ؟



# د لومړي څپرکي موخې

په دې څپرکي کې زده کوونکي د تاریخ له تعریف او ګټو سره آشنا کېږي
د تاریخ لیکونکو سرچینې پېژني او سربېره پردې په هېواد او نړۍ کې له
معمولو نېټو سره بلدېږي. د تاریخي دورو وېش زده کوي او هم د ځینو نېټو
د بدلون په لارو چارو پوهېږي.



# د تاریخ د علم او ګټو په اړه څه پوهېږئ؟



تاریخ د تېر مهال هینداره او د اوس مهال لوست دی

**تاریخ** هغه علم دی چې تېرې شوې پېښې د مهال (زمان) او ځای (مکان) په پام کې نیولو سره بیانوي. مهال او ځای ته د تاریخي پېښو په اړه پام کول تاریخ له کیسو او افسانو څخه بېلوي.

کومه پېښه چې په ټاکلي مهال او ځانګړي ځای کې شوې وي، تاریخي پېښه ده. د بېلګې په توګه، د **بدر غزا** چې په دویم هجري قمري کال کې د مدینې په ۱۵۰ کیلومترۍ کې پېښه شوې یوه تاریخي پېښه ده. دا د تاریخ د علم دنده ده چې د دغې پېښې په اړه موږ ته معلومات را کړي.

پوهېږو چې انسانانو او بشري ټولنې بېلا بېل مهالونه او پړاوونه تېر کړي او اوسني پړاو ته رسېدلي دي. دغه ټولې پېښې او پړاوونه چې په بېلابېلو وختونو او بېلابېلو سیمو کې پېښ شوي، تاریخ لیکونکو لیکلي دي. دغو لیکل شوو متنونو ته تاریخ وایي.

تاریخ پوهان بشري تاریخ پر دوو دورو وېشي: **تر تاریخ وړاندې دوره** (**قبل التاریخ**) او **تاریخي** دوره. له تاریخ څخه وړاندې دورو مطالعه د انسان د پیدایښت څخه پیل او د لیک او لوست د رامنځته کېدلو پورې رسېږي. تاریخي دورې د لیک او لوست د رامنځ ته کیدو او لومړنیو بشري مدنیتونو له پیدایښت څخه پیل کېږي او تر اوسه پورې دوام لري. له تاریخ څخه وړاندې دورو کې

انسانانو ډېر ساده، او ستونزمن ژوند درلود. يوازې د خپل مټ په زور به يې خپلې اړتياوې پوره کولې. په غرونو او سمڅو کې اوسېدل. د ونو او څارويو له پوستکو څخه به يې جامې جوړولې. د مېوو په ټولولو او د وحشي ژوو د ښکار له لارې به يې ژوند تېراوه.
څنګه چې انسان اشرف المخلوقات دی، نو له دې امله د نورو ژوو په پرتله يې په خپل ژوند کې بدلون راوست او اوسني مدني پړاو ته ورسېد. هغه مهال چې انسانان د مدنيت پړاو ته ورسېدل، له هغه سره سم تاريخي پړاو پيل شو او تر اوسه دوام لري. تاريخ موږ له تېرو شويو پېښو څخه خبروي. د پر مختللو ټولنو د ودې لاملونه راپېژني. لنډه دا چې تاريخ د تېر ژوند هېنداره او د راتلونکي انسان او بشري ټولنې لپاره لارښود دی.



زده کوونکي دې همداسې انځور په خپله کتابچه کې رسم کړي او بيا دې د خپل ژوند هر کال په يوه دايره کې وليکي.



## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې تاريخ تعريف کړي او دويمه ډله دې د تاريخ ګټې بيان کړي.



## پوښتنې

۱.تاريخ تعريف کړئ.
۲ .تاريخ پوهان تاريخ په څو دورو وېشي؟ نومونه يې واخلئ.
۳ .تاريخ موږ ته څه را زده کوي؟



## له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د تاريخ د ښېګڼو په اړه له خپلو مشرانو څخه پوښتنې وکړي او لاسته راغلي معلومات دې په ټولګي کې بيان کړي.

# د تاريخ ليکونکو سرچينې کومې دي؟



د افغانستان د ملي ارشيف انځور

د تاريخ تعريف او ګټې مو په تېر لوست کې ولوستلې په دې لوست کې به د تاريخي سرچينو په پېژندلو بحث وکړو.

تاريخ پوهان د تاريخ ليکلو لپاره سرچينو ته اړتيا لري. تاريخي سرچينې دوه ډوله دي: يو ليکل شوي او **خطي** اسناد او تاريخي آبدات او آثار. تحريري يا ليکل شوي اسناد په آرشيفونو کې ساتل کيږي چې د افغانستان ملي ارشيف هم دا ډول اسناد لري.

د ليکل شوو يا خطي اسنادو لوستل او له هغه څخه ګټه اخيستنه ډېر ستونزمن کار دی. دغه ستونزې دوه اړخونه لري. لومړی دا چې رسم الخط د زمانې په اوږدو کې بدلېږي، بله ستونزه دا ده چې انسان د زمانې په اوږدو کې له بېلابېلو ليکونو څخه کار اخيستی چې پوهېدل پرې ګران کار دی؛ لکه **ميخي** ليک، هيروغليف ليک، پخوانی **يوناني** ليک، **سانسکريټ** ليک او داسې نور.



د کابل په دارالامان کې د افغانستان د ملي موزيم ودانۍ

پخواني آثار هم هغه سرچينې دي چې تاريخ پوهان يې

د تاریخ لیکلو لپاره کاروي دا ډول آثار په موزیمونو کې ساتل کیږي. لکه څنګه چې د **افغانستان** په **ملي موزیم** کې په دې ډول ډېر تاریخي آثار شتون لري.

په تاریخ لیکلو کې له لرغونو او تاریخي آثارو څخه ګټه اخیستل د خطي اسنادو په پرتله ګران کار دی. د لرغونو او تاریخي آثارو د بیانولو او تشریح لپاره باید د لرغونپوهانو او لرغون پېژندنې له علم څخه استفاده وکړای شي.



د کابل بالاحصار پنځمه زېږدیزه پیړۍ

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې لیکل شوې سرچینې او دویمه ډله دې تاریخي آثار بیان کړي.

## پوښتنې

۱. تاریخ پوهان کومې سرچینې د تاریخ لیکلو لپاره کاروي؟
۲. له خطي اسنادو څخه ګټه اخیستل په تاریخ لیکلو کې کومې ستونزې را منځته کوي؟
۳. د آرشیف او موزیم ترمنځ توپیر ووایئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

که چېرې د زده کوونکو د اوسېدو په سیمه کې تاریخي ودانۍ وي، د هغه په اړه دې معلومات ولیکي او خپلو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# له تاریخ ښخه وړاندې او تاریخي دورې




په لومړي لوست کې مو ولوستل چې تاریخ لیکونکي انساني ژوند پر دوو لویو دورو ویشي. تر تاریخ وړاندې دوره او تاریخي دوره. تر تاریخ وړاندې دوره د انسان او بشري ټولنو له پیدایښت ښخه پیل شوې او د لومړنیو مدنیتونو او په ځانګړې توګه، د لیك او کتابت د منځته راتلو پورې رسېږي. تاریخي دوره د لیك او کتابت ښخه پیل او تر اوسه دوام لري.

په زرګونو کلونه د انسان له ژوندانه ښخه د ځمکې پر مخ تېر شول چې انسان او بشري ټولنه د لیك او کتابت لومړنیو مدنیتونو پورې ورسېدل. د انسان دغه اوږد عمر او هغه انساني ټولنه پېژندګلوۍ ته اړتیا لري. لرغونپوهان کولی شي چې د ژوندانه د دغه اوږد پېر (دور) په روښانه کولو کې له موږ سره مرسته وکړي.

پوهانو دغه اوږد پېر په مختلفو دورو باندې ویشلی دی. د انسان ډېر پخواني پېر ته د **ډبرې پېر** یا **ستون ایج** (Stone Age) وایي. په دې اوږده مهال کې چې زرګونه کلونه نیسي، انسانانو به له ډبرو ښخه له جوړو شوو توکو کار اخیست او په سمڅو کې به یې ژوند کاوه. د ښارویو له پوستکو ښخه به یې خپل ځانته جامې جوړولې. د مېوو په ټولولو او ښکار باندې بوخت وو.

دویم عصر د **مفرغ** یا **برونز ایج** (Bronze Age) په نامه یاد شوی دی. د لومړي ځل لپاره انسانانو د خپل ژوندانه د چارو د پر مخ بیولو لپاره له فلز ښخه کار واخیست د برونز فلز د مس

او قلعې ترکیب دی. د هغه مهال انساني ډلو د ښارویو د روزلو په څنګ کې د نباتانو د کرلو، د نیالګیو د کښېنولو او د مېوه لرونکو ونو له روزلو سره آشنایي درلوده. د مېشت دایمي ځایونه به یې جوړول. د صنعت دندې هم خپل ارزښت درلود.

دریم عصر د **اوسپنې د عصر** (Iron Age) په نامه یادېږي. له اوسپنې څخه ګټه اخیستل انساني ډلې د مدنیت عصر ته رسوي. له اوسپنیزو وسایلو څخه کار اخیستنې بېلا بېل ځایونه درلودل. د کار وسایل، زینتي آلات او تفریحي او ذوقي شیان به یې له اوسپنې څخه جوړول. انساني ډلو د ښارویو پر ساتلو سرېېره کرنې، بڼوالۍ او د صنعت حرفې ته هم د یوازېنۍ دندې په توګه ارزښت ورکاوه. د مالونو بدلولو سوداګري یې د یوې ځانګړې دندې په توګه ومنله چې یوه ډله خلک پردې دندې بوخت وو.

تاریخ پوهان د لرغون پېژندونکو په څېر تاریخي دورې د **لومړنیو پېړیو، منځنیو پېړیو، نویو پېړیو** او **معاصر پیړیو** په نومونو پېژندلي دي.

**لومړنۍ پېړۍ**: دغه دوره د لیک او کتابت له منځته راتلو څخه چې درې زره کاله پخوا تر میلاد زمانه ده، پیلېږي او بیا تر پنځمې زېږدیزې پېړۍ پورې رسېږي.

**منځنۍ پېړۍ**: له پنځمې زېږدیزې پېړۍ څخه پېل او تر پنځلسمې زېږدیزې پېړۍ پورې دوام کوي.

**نوې پېړۍ**: له پنځلسمې زېږدیزې پیړۍ څخه پېل او تر اتلسمې زېږدیزې پېړۍ پورې رسېږي.

**معاصره پېړۍ**: له اتلسمې پېړۍ (د فرانسې له لوی انقلاب) څخه پیل شوې او تر اوسه دوام لري.

د یا دولو وړ ده چې دا د تاریخي زمانو د وېش یوه بېلګه ده چې تاریخ پوهان یې کاروي. په دغه وېش کې په زیاته پیمانه اروپایي پېښې په پام کې نیول شوې دي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې تر تاریخ وړاندې د درې ګونو زمانو نومونه واخلي او دویمه ډله دې د نوموړو پېړونو ځانګړتیاوې روښانه کړي.

## پوښتنې

۱. د ډبرې په دوره کې انسانانو د کار وسایل له کومو توکو څخه جوړول؟

۲. فلز یا برونز څه شی دی؟ شرح یې کړئ.

۳. د اوسپنې د زمانې انسانانو کومې دندې درلودې؟ شرح یې کړئ.

٤. د تاریخي دورو نومونه واخلئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې د ډبرینو، برونزي او اوسپنیزو وسایلو نومونه ولیکي او په ټولګي کې دې ووایي.

# په تاریخ کې د نېټو بدلون



نېټې او کلیزې د وخت او د وخت د وېش د پېژندلو غوره لاره ده.
په افغانستان کې درې ډوله نېټې او کلیزې معمول دي: **سپوږمیز** (قمري)، **لمریز** (شمسي) او **زیږدیز** (میلادي) په نومونو یادې شوې دي.
د لمریزې (هجري شمسي) او سپوږمیزې (هجري قمري) کلیزې پېل د **حضرت محمد** ﷺ د هجرت له لومړي کال څخه پیلیږي او زیږدیز (میلادي) کال د **حضرت عیسی** علیه السلام له زیږېدو څخه پیلیږي.
په رسمي، دولتي او اداري چارو کې له هجري لمریزې کلیزې څخه کار اخیستل کیږي. ځینو مهمو مذهبي ورځو کې لکه د **روژې میاشت**، **لوی اختر**، **کوچني اختر** او داسې نورو کې له هجري سپوږمیز سنې څخه کار اخیستل کېږي.
هجري لمریزه کلیزه ۱۲ میاشتې ده چې ۳۶۵ ورځې او ۶ ساعته کېږي. هجري سپوږمیز کال هم ۱۲ میاشتې دي، خو د ورځو شمېر یې ۳۵٤ ته رسېږي. همدا د ورځو توپیر د دغو کلیزو په منځ کې د نېټو د توپیر سبب شوی دی.
که وغواړو چې هجري شمسي نېټه په زیږدیزه نېټه او زیږدیزه نیټه په هجري شمسي واړوو، ساده لاره یې دا ده چې ۶۲۱ شمېره ور سره جمع یا ور څخه تفریق کړو. په دې ډول که د **محمود** د زیږېدو کال ۱۹۶۶زیږدیز وي او وغواړو چې دغه نېټه په هجري شمسي بدله کړو، نو د ۶۲۱ شمېره له

۱۹٦٦ شمېرې څخه تفریقوو چې حاصل تفریق یې په هجري شمسي نېټه د محمود د زېږېدو کال کېږي. او که د **زلمي** د زېږېدو کال ۱۳۵۵ هجري شمسي وي او وغواړو چې دا شمسي نېټه په میلادي کال واړوو نو د ۱۳۵۵ شمېره له ٦۲۱ شمېرې سره جمع کوو او حاصل جمع یې په میلادي کال د زلمي د زېږېدو کال راښيي.

لاره:

۱۹٦٦ د محمود د زېږېدو کال
-٦۲۱
۱۳٤۵ هجری شمسي

لاره:

۱۳۵۵ د زلمي د زېږېدو کال
+ ٦۲۱
۱۹۷٦ زېږدیز

د هجري قمري سنو بدلول په هجري شمسي او یا د هجري شمسي سنو بدلول په هجري قمري د نورو محاسبو له مخې ترسره کیږي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د نېټو نومونه واخلي او دویمه ډله دې د شمسي نېټو اوښتون په زېږدیزې او د زېږدیزو نېټو اوښتون په هجري شمسي په ټولګي کې اجرا کړي.



## پوښتنې

۱- لمریز (هجري شمسي) کال څو ورځې او څو ساعتونه دی؟
۲- سپوږمیز (هجري قمري) کال څو میاشتې او څو ورځې دی؟
۳- د سپوږمیز کال او لمریز کال مبدأ څه ده؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د جومات او د خپلې سیمې د ښوونځي د ودانۍ تاریخ وپوښتي او هغه تاریخ دې په زېږدیز کال واړوي.

# دویم څپرکی

## د افغانستان لومړني مدنيتونه

– د افغانستان د پنځه زره کلن تاريخ د پيل په اړه معلومات لرئ؟
– آيا آريايان پېژنئ؟
– د ويدي مدنيت په اړه مو څه اورېدلي دي؟
– د اوستايي مدنيت په اړه په څه پوهېږئ؟
– د افغانستان اساطيري تاريخ (پيشداديان، کيانيان او اسپه) پېژنئ؟
– لرغوني افغانستان او له پرديو سره يې اړيکې (هخامنشيان، موريان او يونانيان).
– د يونان - باختري خپلواک دولتونه.
– د يونان - باختري پېر هنري او فرهنگي ځانگړنې.
–آيا د کوشانيانو د کورنۍ په اړه معلومات لرئ؟
بگرام د کوشانيانو د امپراطورۍ سياسي مرکز
هډه د کوشانيانو د امپراطورۍ فرهنگي مرکز
باميان د کوشانيانو د امپراطورۍ عقيدتي مرکز
- آيا يفتليان پېژنئ؟



# د دویم څپرکي موخې



په دې څپرکي کې به زده کوونکي د افغانستان له پنځه زره کلن تاریخ سره آشنا شي. پر دې سربېره د آریایي مهاجرتونو، آریایي مدنیتونو، د افغانستان له لرغوني تاریخ، او دیونان- باختري خپلواکو دولتونو سره اشنا کېږي او د کوشانیانو د امپراطورۍ په اړه معلومات پیدا کوي. د کوشانیانو عمده سیاسي- فرهنګي مرکزونه پېژني او د کوچنیو کوشانیانو (کیداریانو او یفتلیانو) د امپراطورۍ په اړه معلومات تر لاسه کوي.

# د افغانستان د پنځه زره کلن تاریخ د پیل په اړه معلومات لرئ؟




په تېرو لوستونو کې له تاریخ څخه وړاندې او د تاریخي دورو یادونه وشوه. افغانستان هم تر تاریخ واړندې دورې لري. په بېلابېلو بحثونو کې **د افغانستان له پنځه زره کلن تاریخ** څخه خبرې کېږي. په دې پوهېږئ چې د پنځه زره کلن تاریخ دغه خبره د کومو آثارو او سرچینو په وسیله ثابته شوې ده؟

لرغون پېژندونکو د **کندهار** په شمال لوېديځه سېمه (**منډيگک**) کې څېړنې او کیندنې کړې دي. د دغو څېړنو په پای کې دا ثابته شوې چې تر میلاده درې زره کاله مخکې د منډیگک اوسېدونکو د داسې تمدن بنسټ کېښود چې د افغاننستان د پنځه زره کلن تاریخ ثبوت دی. د کیندنو په لړ کې ډېر آثار او داسې وسایل لاسته راغلي چې په دغه لرغوني سیمه کې د یوه پراخ مدنیت استازیتوب کوي. په دغه ځای کې ډېرې مجللې ودانۍ څرګندې شوې چې لوی انګړ، لوی دېوالونه، کوټې او دفاعي مورچلې لري او د منډیگک د واکمنانو د پلازمېنې استازیتوب کوي. سربېره پر دې د خوراکي توکو په ځانګړې توګه د غنمو زېرمونه، بېلا بېل **خاورین لوښي، مسي او برونزي** ښکلي زینتي وسایل او **خاوریني مجسمې** هم د کیندنو په وخت کې د **فرانسوي** لرغون پوهانو په وسیله پیدا

شوي دي.
د منډیګګ اوسېدونکو له ګاونډیو مدنیتونو سره متقابلې اړیکې درلودې. له موندل شوو آثارو څخه دا ښکاري چې د منډیګګ خلکو په شمال کې د انو او نمازګاه تپې (**ترکمنستان**)، په لوېدیځ کې د **سیالک تپې** (**ایران**) له وګړو سره او په سویل کې د **هړپه** او **موهنجودارو** (هند) له مدنیتونو سره کلتوري او اقتصادي اړیکې درلودې. د منډیګګ لومړني اوسېدونکي ښایي تر میلاده ۲۵۰۰ کاله پخوا دغه سیمې پرېښې وي. د منډیګګ د پرېښودلو په اړه پوهانو بېلا بېلې نظریې وړاندې کړې دي. ځیني په دې عقیده دي چې پرله پسې وچکالۍ او د **هلمند** د سیند د اوبو لږوالی يې بنسټيز لاملونه دي چې د منډیګګ اوسیدونکي د هغه ځای پرېښودلو ته اړ شول.



له منډیګګ څخه تر لاسه شوي مجسمې

ځیني نور بیا د منډیګګ د پرېښودلو لامل جګړې بولي چې په پایله کې مخالفان بریالي شول او منډیګګ د اوسېدونکو میشت ځایونو ته يې اور ورواچاوه او هغوی يې د کور کلي پرېښودو ته اړ کړل.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر درېيو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د هغو آثارو په باره کې معلومات ورکړي چې له امله يې د افغانستان پنځه زره کلن تاریخ ثابت شوی دی. دویمه ډله دې د منډیګګ د خلکو اړیکې له نورو ګاونډیو خلکو سره څرګندې کړي او درېیمه ډله دې له منډیګګ څخه د خلکو د وتلو لاملونه څرګند او خپلو ټولګیوالو ته دې بیان کړي.

## پوښتنې

۱-منډیګګ چېرته پروت دی؟
۲-د افغانستان د پنځه زره کلن تاریخ ثبوت په کومو آثارو کې څرګند شوی دی؟
۳-له ګاونډیو خلکو سره د منډیګګ د وګړو اړیکې ووایئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د افغانستان د تاریخ او لرغونتوب په باره کې یو مطلب جوړ او راتلونکي ساعت کې دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

# آیا آریاییان پېژنئ؟



د لرغوني بلخ (ام البلاد) د ودانیو پاتې شونې

افغانستان ته د **آریاییانو** راتګ تر زېږدیز (میلاده) دوه زره او پنځه سوه (۲۵۰۰) کاله پخوا منل شوی دی. آریایانو خپلو ځانوته اصیل او د ښو اخلاقو خاوندان ویل. د هغوی د لومړنیو تم ځایونو په اړه ډاډمن معلومات نشته. هغه څه چې څرګنده دي هغه دا دي چې آریایان له **سیر دریا** او **آمو سیند** څخه د لرغوني افغانستان **بخدي** (**بلخ**) ته راغلل.

آریایانو د ژوندانه په لومړني مهال کې کوچیاني او چوپاني ژوند درلود کله چې په بخدي کې میشت شول، ښاري ژوند ته یې مخه کړه. آریایانو کورنی نظم درلود. خپلې کورنۍ ته یې «**کولا**» ویل. له څو کولا څخه یو قبیله او له څو قبیلو څخه یو ټبر (قوم) جوړېده. د خپلو اوسېدو ځای ته یې «**پور**» ویلې. دغه ټول نومونه د **کهول**، **میرویس**، **بګرام** او **شېرپور** کلمو کې اوس هم معمول دي. اریایانو د خپلو اوسیدو سیمو ته «**اریانا ویجه یا اریانا ورشو**» ویل او د ورشو کلمه تر اوسه هم استعمالېږي.

آریایانو په بخدي (بلخ) کې د لومړني اریایي مدنیت بنسټ کېښود. د بلخ ښار یې جوړ کړ. لوی کورونه او جګ دېوالونه یې ودان کړل. د ښار د ساتنې لپاره یې ډېر جګ دېوالونه او برجونه جوړ کړل چې په بلخ کې لا تر اوسه هم د پخواني بخدي آثارو پاتې شونې لیدل کېږي.

اریایانو بلخ ته تر رسېدلو وړاندې کوچیانی ژوند درلود. دغه مطلب له هغو شواهدو او آثارو څخه څرګندېږي چې لرغون پېژندونکو د **سمرقند** په لرغونې سیمې (**تالی برزو**) کې په ۱۹۳۹ ز کال کې

وموندل. په دې لرغونو آثارو کې يوه هم هغه مجسمه وه چې نيمه تنه يې د انسان او نيمه تنه يې د حيوان په ډول جوړه شوې وه. پوهان په دې باور دي چې دغه مجسمه د **کيومرث پاچا** په مهال کې جوړه شوې چې د آريايانو يو ځواکمن ټولواک و.

آريايانو بخدي ته تر رسېدو وروسته د څارويو د ساتلو او روزلو تر څنګ په کرنې او بڼوالۍ لاس پورې کړ. ډول ډول ګلونه يې وکرل او ميوه لرونکې ونې يې کېنولې، د خوښۍ په محفلونو کې يې يو بل ته د ګلانو ګيډۍ ورکولې، د نوي کال په لومړيو ورځو کې ښځو، نارينه وو، ځوانانو او زړو يو ځای د جشن محفلونه نيول، ساز و سرود او اتڼونه به يې کول. د آريايانو مشهور جشن د «**سامانه**» په نامه يادېده. په جشن کې ځوانانو آسونه ځغلول، اتڼونه به يې کول، د غشو او نېزې لوبې به يې کولې، د ساز، سرود او خوښۍ محفلونه به يې جوړول.

**د آريايانو لېږد (مهاجرت)**

د آرييايانو د ژوندانه او مدنيت په اړه له څلورو **ويدي** کتابونو يا سرودونو څخه چې د ويدي په نامه يادېږي، معلومات لاسته راغلي دي. په دغو کتابونو کې د آريايانو ادبي، کلتوري، اقتصادي، مذهبي او سياسي معلومات شته.اوس هم تاريخ پوهان د اريايانو د ژوندانه د مختلفو اړخونو په اړه د معلوماتو د لاسته راوړلو لپاره له دغو څلورو کتابونو څخه چې په **سانسکريټ** ژبه ليکل شوي، ګټه اخلي. د وخت په تېرېدو سره د آريايانو شمېر په بخدي کې ډېر شو او د لېږد او مهاجرت لړۍ يې پيل کړې. يو شمېر اريايي ډلې د **سليمان** د غرونو لمنو ته او د **هندوکش** سويل ته واوښتل او هلته يې واړول. وروسته د **هند** ځمکو ته ورسېدل د آريايانو نورې ډلې لوېديځې خواته ولېږدېدې. هغوی لومړی **پارس (ايران)** او وروسته **ترکيې** او **اروپايي** هېوادونو ته ورسېدل. هغه آريايان چې په افغانستان کې پاتې شول هغوی په هېواد کې د **ويدي** او **اوستايي** مدنيتونو بنسټ کېښود.

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د بلخ د آريايانو د لومړني ژوندانه په اړه او دويمه ډله دې د اريايانو د ټولنيز جوړښت په اړه خپل معلومات وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱. آريايانو خپل ځان څنګه تعريف کړی؟

۲. د آريايانو لومړنۍ پلازمينه (پايتخت) څه نومېده او چيرې وه؟

۳. آريايانو بخدي ته تر رسېدو وړاندې ........................... ژوند درلود.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د کوچياني ژوندانه په اړه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې بيان کړي.

# د ويدي مدنيت په اړه موخه اوريدلي دي؟



د آريايانو مهاجرت

**د آريايانو په باره کې مو لازم معلومات لاسته راوړل. اوس د آريايانو مدنيت سره آشنا کېږو.**

د لرغوني افغانستان لومړی مدنيت د **ويدي** په نامه يادېږي. د دې مدنيت نوم له ويدي کتابونو څخه اخيستل شوی دی. دغه مدنيت تر ميلاده ۱۸۰۰ کاله پخوا پيل او تر ميلاده ۱۲۰۰ کاله د مخه يې دوام درلود.

د دغه مدنيت په اړه معلومات د ويدي له څلورو ګونو وکتابونو څخه لاسته راغلي چې په ويدي کتابونو مشهور دي. دا کتابونه پر دې سربېره چې بشپړ سياسي، اقتصادي او ټولنيز معلومات لري، د آريايانو د هغه مهال د اخلاقو او عقيدو او د هغې زماني د کلتور په اړه هم اړين معلومات په کې شته. لکه چې د مخه مو ولوستل آريايانو ځانګړی ټولنيز نظام درلود. په آريايي ډلو کې شاهي نظام واکمن و، ټولنه په ځانګړې تدبير اداره کېدله. د کورنۍ په سر کې پلار (**پاتي**) و. له څو کورنيو يو خېل يا زی جوړېده چې د هغې په رأس کې **کوترا پاتي** موجود و. له څو خېلونو يا زيو څخه يوه قبيله جوړېده چې په رأس کې يې **ګراماپاتي** ځای درلود. د څو قبيلو رئيس ته يې **ويس پاتي** ويلې. څو ويس پاتي به د ټولواک له خوا چې **راجان** نومېده اداره کېدل.

د آريايانو د ټولنيزې اوضاع په اړه هم ويدي سرودونه روښانه معلومات لري. د بېلګې په توګه، د ښځې مقام ته په ويدي مدنيت کې درناوی کېده؛ سره له دې چې د هلک زېږېدنه يې نېکمرغي ګڼله، خو د ويدي پېر ښځو ځانګړی ځای درلود. لکه څنګه چې په **ريګويدا** کې د ډېرو ښځو اشعار له ځانګړي

هنري لطافت او صنعت سره ثبت شوي دي، له هغو څخه یوه شاعره ښځه د (**گوشاه**) په نامه شهرت درلود چې د هغې اشعار د ریگویدا په لومړي جلد کې ثبت دي. بله شاعره ښځه «**لوپامودرا**» نومېږي چې د هغې اشعار هم د ریگویدا د کتاب په لومړي جلد کې راغلي دي.

په ویدي مدنیت کې ځانگړی اقتصادي نظام و. د ویدي مدنیت انساني ډلو د خپل ژوند اساسي اړتیاوې د چوپانی او کرنې له لارې پوره کولې د آریایانو شتمني د څارویو لکه پسونو، وزو، غویانو او داسې نورو د شمېر له مخې اندازه کېده.

آریایان د کرنې او چوپانی تر څنگ په سوداگرۍ هم بوخت وو. د تبادلې واحد او تجارتي متاع یې غواگانې وې چې هغه ته یې «**پیسو**» ویل. د پیسې نوم هم چې اوسنی پولي واحد دی ریښه یې د آریایي دورې د ویدي عصر پیسو ته رسېږي.

د ویدي مدنیت پر مهال به وگړو ټوکران اوبدل. د څارویو له وړیو څخه به یې ډول ډول جامې گنډلې. اوسپنیز وسایل به یې جوړول. له اوسپنې څخه به یې پر ظریفو زینتي وسایلو سربېره د تولیدي چارو لپاره هم ډېر کلک وسایل جوړول. د ډول، ډول خاورینو او لرگیو لوښو جوړولو رواج درلود. د ښځو لپاره ځانگړي لوښي وو. د ویدي مدنیت پر مهال ټولو کسبگرو لکه کلالانو، پښگرانو، نجارانو او نورو په ډېر قدر او حرمت سره ژوند کاوه.

په ویدي عصر کې انسانانو په مختلفو خدایانو عقیده درلوده. له هغو څخه یو هم (**اوشاس**) وو چې د خلکو په باور هغه یوه ښځه وه او د سپیده دم یا د سهار خدای په نامه یادېدله. سره له دې چې د ډېرو خدایانو عبادت به یې کاوه، مگر بیا یې هم په خدای باندې خاصه عقیده درلوده، په ریگویدا کې داسې راغلي دي: «پر هر ثابت او هر حرکت کوونکي او هم هر څه چې پر لارې ځي او هر هغه څه چې مري پر دغو ټولو شیانو باندې یوازې یو خدای واکمني لري».



## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دریوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د ویدي مدنیت د سیاسي اوضاع په اړه، دویمه ډله دې د اقتصادي وضعې په اړه او درېیمه ډله دې د ویدي دورې د اعتقاداتو په اړه خپل معلومات په ټولگي کې بیان کړي.



## پوښتنې

۱. لومړنی مدنیت په افغانستان کې په کوم نامه یادیږي؟

۲. ښځو د ویدي مدنیت پر مهال څه ډول مقام درلود؟ شرح یې کړئ.

۳. د ویدي وگړو د عقایدو په اړه په څه پوهیږئ؟ خپل معلومات څرگند کړئ.



## له ټولگي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له مشرانو څخه د اسلام تر مبارک دین دمخه د خلکو د عقیدو په اړه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې ټولگیوالو ته بیان کړي.

# د اوستايي مدنيت په اړه څه پوهېږئ؟



د اوستایی مدنیت یوه سیمه

**او ستايي** مدنيت د افغانستان په تاريخ کې دويم مدنيت دی. د دې مدنيت نوم د **اوستا** له کتاب څخه اخيستل شوی چې د **زردشتيانو** لپاره سپېڅلی دی. اوستا د قانون، بنياد او دستور په توګه معنا شوې ده. دغه مدنيت له زېږد څخه دمخه د ۱۲۰۰ کالو شاوخوا کې پيل شوی او تر زېږد دمخه ۷۰۰ کالو پورې يې دوام کړی.

د اوستايي مدنيت بنسټ په **بخدي** کې کېښودل شو. په دغه اړه د اوستا په کتاب کې داسې راغلي دي: **يما د اهو رامزدا** په امر يوه سيمه جوړه کړه" چې د هغه پلن والي او اوږدوالي د يوه **اسپرس** (د آس ځغلولو د يوه ميدان) په اندازه و چې په هغه کې ځينې حيوانات لکه پسونه، غويان، مرغان او ځينې ځناور لکه سپي او داسې نور ساتل او د اوبو ځای يې د يوې **هاني** (ميل) په اوږدوالي وکېنده او په دغه سيمه کې يې ښارونه، کوڅې او خونې جوړې کړې. خو دروغجنو، ليونيو او عليلو کسانو ته يې په ښار کې ځای ور نکړ.

زردشت چې د **سپينتمان** په نامه هم ياديده د زردشتيانو مشر لارښود، د اوستا پنځوونکی او د اوستايي مدنيت محرک و. نوموړي خپل نصيحتونه په سرودونو کې ويل. زردشت د سالم ژوند لپاره

پر دربوو اصلونو باندې ټينګار کاوه چې هغه **ښه فکر کول، ښه ويل** او **ښه کار کول** دي. د زردشت د شخصيت او ژوندانه په هکله د اوستا په کتاب کې ډېرې څرګندونې شته. داسې ويل کېږي چې نوموړي د پخواني بلخ (بخدي) د ښار په شاوخوا کې ژوند کاوه.

زردشت د لرغوني افغانستان په يوې نجيبې کورنۍ پورې اړه درلوده. نوموړي د فکري اصلاحاتو لارښوونه پيل کړه. پر همدې مهال يې د يوې نوې تګلارې پر بنسټ د ځينو وزيرانو او واکمنانو سره د خپښې اړيکې جوړې او هغه يې وپاللې.

ځينې مؤرخان زردشت د **اسپه** له مشهورې کورنۍ څخه ګڼي. د زردشت د کورنۍ په اکثرو نومونو کې د اسپه کلمه په وار وار راغلې ده. د زردشت پلار **پور اسپه** او نيکه يې **ميچت اسپه** نومېده چې د وروستي نوم معنا يې د قوي آسونو څښتن ده.

د اوستا کتاب د زردشت له خوا وړاندې شوی دی. دغه کتاب په حقيقت کې د زردشتي آيين د پيروانو لپاره د لارښوونې اصول دي. اوستا د نړۍ د پخوانيو کتابونو له جملې څخه ده چې په اغلب ګومان سره دغه کتاب کې له ۱۲۰۰ څخه تر ۶۰۰ کاله پخوا تر ميلاده پېښې راغلې دي.

په اوستايي مدنيت کې درې ګونې ټولنيزې طبقې (**روحانيون، نظاميون او بزګران**) موجود وو. خلکو کليوالي ژوند درلود. بزګري او ښوالي د دوی اصلي دنده وه. د دې ترڅنګ، دوی په مالدارۍ هم بوخت وو. برونزي او اوسپنيز شيان به يې کارول. سربېره پر دې په اوستا کې د سياسي کورنيو او واکمنانو په اړه هم څرګندونې شوې دي. په اوستا کې هغو نومونو يادونه شوې چې د افغانستان په اساطيري تاريخ کې لوړ ځای لري؛ لکه: **اسپه، کيانيان** او **پيشداديان** چې په راتلونکو درسونو کې به يې په تفصيل سره ولولو.

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د اوستا په اړه او دويمه ډله دې د زردشت او د هغه د نصيحتونو په باره کې خپل معلومات ټولګيوالو ته ووايي.

## پوښتنې

۱. د اوستايي مدنيت او د هغه د معنا په اړه څه پوهيږئ؟
۲. زردشت څوک و؟
۳. اوستا پر څو برخو وېشل شوې ده؟

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي له ښه فکر کولو، ښه ويلو او نيک کار کولو څخه څه معنا اخلي؟ له خپلو دوستانو او خپلوانو څخه دې پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې ټولګيوالو ته بيان کړي.

# د افغانستان اساطيري تاريخ (پيشداديان، کيانيان او اسپه)



رستم د شهنامې مشهور پهلوان

**د افغانستان په اساطيري تاريخ کې درې مهمې کورنۍ معرفي شوې دي.**

**الف- پيشداديان**

**هوشنگ** لومړنی اوستايي پهلوان دی چې له دېوانو سره جنگېده او پر هغوی يې واکمني درلوده. هوشنگ د **کيومرث** له اولادې څخه و چې د پيشداديانو لړۍ د ده له نسل څخه ده. هوشنگ د بخدي ښار د لومړني قانون جوړوونکي په توگه پېژندل شوی دی.ترهوشنگ وروسته **تهمورث** واک ته ورسېد چې د اوو هېوادونو د ټولواک په نوم پېژندل شوی و. له تهمورث وروسته واک جمشيد (**يما**) ته ورسېد چې د افغانستان په اساطيري تاريخ کې په زړه پورې حماسي او عشقي کيسې لري. د هغه مهال مشهورې کيسې زياتې دي چې د بېلگې په توگه د **رستم** او **سهراب** او د **کاوه آهنگر** د کيسو يادونه کولی شو. د کاوه آهنگر کيسه د داسې پېښو او واقعاتو پر بنسټ جوړه شوې چې يوه کس د کاوه اهنگر په نامه د خپلې پښگرۍ څرمنه د بيرغ په ډول د نيزې پر سر وتړله او خلک يې را ټول کړل چې د **ضحاک** او د هغه د ظلم او ستم پر ضد پاڅون وکړي چې په پای کې ضحاک له منځه لاړ او کاوه آهنگر بريالی شو.

**ب- کيانيان**

کيانيان د افغانستان د اساطيري لړۍ يوه بله کورنۍ ده چې په پخواني بلخ کې يې واکمني درلوده. دغې کورنۍ ته يې په **شاهنامه** کې کياني ويلې ده. د اوستا په ليکنه کې د دې کورنۍ لومړنی ټولواک د

**کیقباد** په نامه یاد شوی چې د رستم پهلوان په غوښتنه په بلخ کې پر تخت کښیناست او پنځلس کاله یې واکمني وکړه.
تر هغه وروسته، د ده زوی **کیکاوس** پرتخت کښېناست چې له پردیو سره وجنګېد او پر هغوی بریالی شو. تر کیکاوس وروسته **سیاوش** واک ته ورسېد. سیاوش ددې کورنۍ ډېر ځواکمن ټولواک و. دغه واکمن د **تورانیانو** سره په مخامخ جګړه کې له منځه ولاړ. تر ده وروسته **کیخسرو** واک ته ورسېد. نوموړي د پلار د وینې د غچ اخیستلو لپاره له تورانیانو سره وجنګېد. په پای کې **توراني افراسیاب** او د هغه ورور یې په زنځیر وتړل او ویې وژل.

**ج- اسپه**

له کیاني کورنۍ وروسته د افغانستان په اساطیري تاریخ کې بله لړۍ منځ ته راغله چې د اسپه کورنۍ په نامه یې شهرت وموند. ځنګه چې د دغې کورنۍ د هر ټولواک د نامه په پای کې د اسپه کلمه راغلې ده نو په تاریخي متونو کې د اسپه د کورنۍ په نوم مشهور دي. ددغې کورنۍ لومړنی ټولواک **لهراسپ** نومېده. لهراسپ خپل مرکز له بخدي څخه د بلخ نوبهار ته راوست. هغه هم د تورانیانو په وسیله ووژل شو. نوموړی باهمته عادل او د لوړ شخصیت خاوند او د زردشت د تګلارې پیرو و.
داسې ویل کیږي چې زردشت د خپل کتاب (۱۲۰۰۰) نسخې لیکلې وې چې د **وهران** په اورتون کې ساتل کېدې. دغه معبد د ګشتاسپ له خوا په بلخ کې ودان شوی و.
له ګشتاسپ څخه وروسته ددغې لړۍ نور پاچاهان هم واک ته ورسېدل. د بېلګې په توګه **اسفندیار، داراب** د **همای زوی** او د داسې نورو نوموړنه یادولای شو. باید وویل شي د افغانستان اساطیري تاریخ پر دریو سرچینو (منابعو) ولاړ دی چې هغه **اوستایي متون، د فردوسي شاهنامه** او **شفاهي کیسې** دي چې تر اوسه د افغانستان د وګړو ترمنځ سینه په سینه یو او بل ته لېږدول کېږي او لا تر اوسه په مختلفو ډولونو پاتې شوې دي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دریوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د افغانستان د اساطیري تاریخ د کورنیو نومونه واخلي، دویمه ډله دې ددې کورنۍ د دریوو نامتو شخصیتونو نومونه واخلي او دریمه ډله دې د افغانستان د اساطیري تاریخ پر ځانګړو سرچینو باندې خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱. د افغانستان په اساطیري تاریخ کې کومې کورنۍ شاملې دي؟
۲. لومړۍ کورنۍ د افغانستان په اساطیري تاریخ کې په کوم نامه یاده شوې ده؟
۳. د افغانستان د اساطیري تاریخ درې سرچینې کومې دي؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د تاریخي کیسو په اړه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# لرغونی افغانستان او له پردیو سره یې اړیکې
## (هخامنشیان، یونانیان او موریایان)



داریوش او خشایارشا



مقدوني سکندر




چندرا گوپتا

له زېږدیز کال څخه وړاندې په شپږمه پېړۍ کې د لرغوني افغانستان په محدوده کې واحده سیاسي واکمني نه وه. په هر گوټ کې محلي حکومتونو او خپلواکو سیاسي واکمنیو حاکمیت درلود. همدا مهال د افغانستان په لوېدیځ کې د یوې نوې امپراطورۍ بنسټ کېښودل شو چې د **پارس** په تاریخ کې د **هخامنشیانو** په نامه یاده شوې ده. د دې امپراطورۍ بنسټ د **مادانو** د کورنۍ وروستني لمسي **کوروش** له زېږدیز څخه وړاندې په ۵۵۰ کال کې کېښود.

**هخامنشیان**

د کوروش تر قوماندې لاندې لښکرو له زېږدیز څخه د مخه په ۵۴۹ کال کې د افغانستان ځینې شمالي سیمې تر لنډې مودې پورې تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستې. تر کوروش وروسته د ده زوی **کمبوجیه** واک ته ورسېد. هغه د پارس لوېدیځو پولو ته زیات پام وکړ. د **مصري فرعون** سره یې جگړې وکړې او هغه ته یې ما ته ورکړه او د هغه سیمې یې خپلې کړې. نوموړی پارس ته د بېرته تگ پرمهال پر لار مړ شو.

د هخامنشیانو زیات کسان واک ته ورسېدل خو نامتو واکمنان یې **لومړی داریوش**، **خشایار شاه**، **دویم داریوش** او **دویم اردشیر** وو. د هخامنشیانو امپراطوري له زېږدیز څخه دمخه په ۳۳۱ کال کې مقدوني سکندر له منځه یووړه.

**یونانیان**

مقدوني سکندر د هخامنشیانو امپراطوري له منځه یووړه او بیا له ځنده پې د میلاد څخه د مخه په ۳۳۰ کال کې پر لرغوني افغانستان یرغل وکړ. سکندر د افغانستان د نیولو لپاره د **هرات**، **کندهار**، **کابل** او د **پغمان** له لارې د **ققفاز سکندریې** (**بگرام**) ته ولاړ او وروسته د افغانستان شمالي سیمو ته ورسید او هلته یې د **ای خانم** د ښار بنسټ کیښود. د شمالي سیمو له تصفیې څخه وروسته ختیځې خواته ولاړ او د **نورستان** او **کونړ** له لارې **چترال** ته ورسېد. سکندر له **یوسفزیو** سره په یوه جګړه کې په پښه ټپي شو. د سکندر لښکریان پنځه کاله د افغانستان په مختلفو سیمو کې وجنګېدل.

سکندر، یونان ته د بېرته تللو پرمهال د **سند سیند** له لارې د مقدونیې پر لوري وخوځېد. د لارې په اوږدو کې د ملاریا په مرض اخته او تر میلاده ۳۲۳ کاله وړاندې مړ شو. له سکندر څخه وروسته دغه لویه یوناني امپراطوري د یونان د پوځي مشرانو تر منځ وویشل شوه.

**موریایان**

د هند موریایانو چې لومړنی واکمن یې چندراګوپتاو د نورو پردیو په شان یرغلګرو لرغوني افغانستان یوه برخه هغه مهال تر لاسه کړه چې په یوناني امپراطورۍ کې یې ګډوډي رامنځته کړه. د هغوی واکمني د یونان باختري خپلواکو دولتونو د خپلواکۍ د اعلان تر مهاله دوام وکړ.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دریوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د هخامنشیانو په اړه، دویمه ډله دې د یونانیانو په باره کې او دریمه ډله دې د هندي موریایانو په اړه خبرې وکړي.

### پوښتنې

۱. د هخامنشیانو په اړه څه پوهیږئ؟ بیان یې کړئ.
۲. یونانیان څه ډول د افغانستان خاورې ته راورسېدل.
۳. د هند د موریایانو په باره کې څه پوهیږئ؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د هخامنشیانو، یونانیانو او موریایانو په اړه معلومات راټول او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د یونان- باختری خپلواک دولتونه



یوناني مسکوکات

د مخه مو ولوستل چې د سکندر تر واکمنۍ لاندې سیمې د یوناني قوماندانانو تر منځ وویشل شوې. یوناني **سلوکیدیانو** د سکندر د امپراطورۍ یوه برخه هم په اختیار کې درلوده. هغوی **شام** او په هغه پورې تړلې سیمې اداره کولې. سلوکیدیانو یو تن یوناني افسر د لومړي دیو دیتس په نامه د باختر د والي په توګه وګوماره. نوموړی چې کله باختر ته ورسېد، د باختر او **سغدیانه** خپلواکي یې اعلان کړه. د **دیو دیتس** د واکمنۍ پېر له زېږدیز څخه وړاندې ۲۴۵ - ۲۳۰ کلونو پورې رسېږي. تر هغه وروسته دویم دیو دیتس د باختر کنټرول او اداره په لاس کې ونیوله. نوموړي د خپل دولت خپلواکي اعلان کړه له **اشکانیانو** سره یې د دوستۍ اړیکې ټینګې کړې. ځکه دواړه نوي دولتونه د شام (سوریې) د سلوکیدیانو پر خلاف وو. **ایوتیدیوم** د یونان باختري دولت یو ډېر ځواکمن ټولواک و، چې د خپلې واکمنۍ په پېر کې یې د **شامي سلوکیدیانو** یرغل پر شا وتنباوه او بیا یې د سولې له لارې هغوی په شا کړل. نوموړي د **هندوکش** سوېلي برخې یې له کومې جګړې څخه د **هندي** دولت له سلطې څخه وژغورلې او په لوېدیځو برخو کې د **توس** تر سیمو پورې مخ ته ولاړ. په شمال کې یې **کاشغرستان** او په سوېل کې یې **بلوچستان** له لرغوني افغانستان سره یو ځای کړل. په همدغه دوره کې باختر د **زرو ښارونو** (**هزارشهر**) نوم تر لاسه کړ.

د یونان باختري بل ټولواک **ډیمیتروس** نومېده. نوموړی تر **سند** او **پنجاب** پورې مخ ته ولاړ او شمالي هندوستان یې د **ګنګا** تر څنډو پورې ونیو. د یونان باختري پولې د ایران له دښتو (د اوسني ایران له مرکزي سیمې څخه) د ګنګا تر سیمو او بیا له **سیحون** او **جیحون** څخه د **هند** تر **بحیرې** پورې رسېدلې وې. د یونان باختري ټولواکانو فتوحات له میلاد څخه دمخه د ۱۷۵ کال پورې دوام درلود.

**ایوکراتید** د یونان باختري بل ټولواک و. نوموړي داسې والیان په خپلې امپراطورۍ کې وګومارل، چې په هند کې یې د خپلواکو دولتونو لپاره شرایط برابر کړل کله چې ایوکراتید واکمن شو. د دولت


یوناني هرپوکرات د خوښۍ الهه د بګرام له زېرمو څخه

پرځېدل او د یونان باختري امپراطورۍ جوړېدل پیل شول. له یوې خوا د **اشکانیانو** یرغل د امپراطورۍ په لوېدیځ کې او له بلې خوا دننه په هېواد کې ستې قبیلو د یونان باختري د خپلواکو دولتونو د پرځېدلو زمینه برابره کړه. یونان باختري دولت تر میلاده ۱۳۵ کاله پخوا خپل مرکز له **بلخ** څخه **بګرام** ته ولېږداوه او خبره دې ته ورسېده چې تر میلاده ۷۰ کاله پخوا لومړی ساکان په سویلي افغانستان کې واک ته ورسېدل او بیا د ستې قبایلو یوې څانګې چې د «یوچي» په نامه یې شهرت درلود، بلخ ونیو او د یونان باختري دولتونو لړۍ یې راوپرځوله. **یوچیانو** چې د افغانستان په لرغوني تاریخ کې د **کوشانیانو** په نامه پېژندل شوي، یوه لویه امپراطوري را منځته کړه، چې په دیارلسم لوست کې به یې ولولو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د باختري سیمو د خپلواکۍ د اعلان او دویمه ډله دې د یونان-باختري دورې د نامتو واکمنانو په اړه خپل معلومات په ټولګي کې ووایي.



## پوښتنې

۱. د ایوتیدوم په اړه څه پوهېږئ؟

۲. دیمتریوس څوک و او د هغه د کړو وړو په اړه څه پوهېږئ؟

۳. د یونان باختري امپراطورۍ پرځیدل څه ډول پیل شو؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د یونان باختري دولتونو په اړه مطلب ولیکي.

# د یونان- باختري پېرهنري او فرهنگي ځانګړتیاوې



د یونان باختري پاچاهانو مسکوکات

په دې کې شک نشته چې د **سکندر** له پوځي یرغل سره سم له یوناني لښکرو سره یو ځای هنرمندان، پوهان او کسبګر، نیول شویو هېوادونو ته راغلل چې دغو هېوادونو څخه یو هم افغانستان و. د دغو هنرمندانو نوښتونه د ختیځو سیمو په تېره بیا د لرغوني افغانستان د خلکو له کلتور سره یو ځای شول او افغاني بڼه یې خپله کړه.

د یونان- باختري واکمنیو پر مهال اقتصادي وضعې مناسب پرمختګ کړی و. مالداري، کرنه، د کسبګرو بېلا بېل صنعتونه او سوداګریزو اړیکو د پام وړ وده کړې وه. **ایوتیدم** له سرو او سپینو زرو څخه جوړې شوې سکې پر خپل نوم جوړې کړې چې د ښو او مناسبو اقتصادي شرایطو استازیتوب یې کاوه. د سوداګرۍ ملي او نړیوالې لارې یې پرانستې وې او د کاروانونو د تلو راتلو امنیت هم نیول کېده. هغه مهال د هېواد بېلا بېلې سیمې شهزادګانو اداره کولې.

د یونان- باختري واکمنۍ پایښت کابو (۱٤۰) کاله و. د نوي کلتور په رامنځته کېدو او دودولو یې خپلې پراخې اغېزې وکړې. د صنایعو پراخوالی، هنري او فلسفي افکار ژبه او لیک دود او نورې کلتوري خواوې یادولی شو. دغه ټولې کلتوري اغیزې د یونان- باختري امپراطورۍ تر ولکې لاندې د سیمه ییزو عناصرو سره یوځای شوې وې او یو ځانګړی کلتور یې رامنځته کړی و چې د یونان- باختري مدنیت په نامه په لرغوني تاریخ کې شهرت لري.




د یونان-باختري دورې په یوه ډبرلیک کې چې په ای خانم کې د لرغون پوهانو لاسته راغلی و داسې لولو.

**په وړکتوب کې ښه روزنه واخله.**

**په ځوانۍ کې په خپلو غوښتنو حاکم اوسه.**

**په پاخه عمر کې رېښتنی اوسه.**

**په زړښت کې ښه ناصح اوسه.**

**د ژوندانه په ورستنیو ورځو کې به پوه شې چې څه ډول بې له ارمانه مرې.**

د یونانیانو اغېزې په عمراني چارو کې هم محسوسېدلې.

پوځي او اداري مرکزونه یې په عمومي ډول د سیندونو د یو ځای کېدو په سیمو کې جوړول. د دغو ودانیو بېلګې د بگرام او ای خانم په پاتې شونو کې لیدلي شو. په ودانیو کې دفاعي لارې په پام کې نیول شوي دي. د کنټرولي برجونو، دفاعي کندې او ډول ډول بندونو جوړولو ته پام اړول شوې و.

د یو شمېر تاریخ لیکونکو په باور یوناني نفوذ په افغانستان کې تر اوومې زېږدیزې پېړۍ پورې دوام وکړ. دغه اغېزې په تېره بیا په لیک دود او هنر کې د یادونې وړ دي یوناني لیک دود په بېلا بېلو ځایونو کې کارول شوي دي. متن او مطلب که په هره ژبه وړاندې کېده خو له یوناني لیک دود څخه کار اخیستل کېده. پردې سربېره د مجسمې جوړولو هنر، رسامي، نقاشي په ښېښه یي لوښو کې د یوناني ودانیو بېلا بېل شکلونه او ځېرې تر ډېرو وختونو پورې په لرغوني افغانستان کې دود درلود.

لنډه دا چې کابو په ۱٤۰ کلونو کې د یونان باختري واکمنی ۳٦ تنو پاچاهانو او ددې لړۍ یوې ملکې هم په لرغوني هند او افغانستان کې واکمني کړې ده. دغو ټولو د یوناني فرهنګ او کلتور د پراختیا لپاره د هند او باختر په سیمو کې هڅې کړې دي.

د یادونې وړ خبره دا ده چې یوناني فرهنګ په دې سیمو کې په سوچه ډول پاتې نه دی. ځکه د لرغوني افغانستان له فرهنګ او کلتور سره یو ځای شوی او د فرهنګ یوه نوې بڼه رامنځته شوې چې د یونان باختري مدنیت په نامه یاد شوی دی.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د یونان باختري د اقتصادي وضعې په اړه خپل معلومات څرګند کړي او دویمه ډله دې د یونان باختري دورې د دوو فرهنګونو په یو ځای کېدلو خبرې وکړي.

### پوښتنې

۱. د یونان باختري دورې د اقتصادي وضعې په اړه په څه پوهېږئ؟
۲. د یوناني ودانۍ بېلګې او اغېزې په کومو سیمو کې لیدل کیږي؟
۳. کوم ډول لیک دود په یونان باختري دوره کې دود درلود؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له ټولګي څخه بهر له خپلو مشرانو څخه د سکندر او یونانیانو د کیسو په اړه پوښتنې وکړي او لاس ته راوړي معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

# آیا د کوشانیانو د کورنۍ په اړه معلومات لرئ؟



د رباتک ډبرلیک

د رباتک په ډبرلیک کې سربېره پر نورو مطالبو د کوشانیانو د شجرې په اړه داسې راغلي دي: «کجولا کدفیسس غورنیکه، ویما تکتو نیکه او ویما کدفیسس د کنشکا پلار دی.» د رباتک په ډبرلیک کې د کوشانیانو د امپراطورۍ سرحدي ښارونه هم راغلي دي. د بېلګې په توګه د کوشانیانو د امپراطورۍ سویلي ښار د چمپا په نامه یاد شوی دی.

## د کوشاني دولت رامنځته کېدل



د کنشکا مجسمه

له میلاد څخه شاو خوا ۵۰ کاله مخکې کوچي قبایلو د کورنیو مخالفانو په مرسته یونان-باختري دولت له منځه یووړ. بلخ یې ونیو او د یوې نوې امپراطورۍ بنسټ یې کېښود چې بشپړه افغاني بڼه یې درلوده. د دې دورې په اړه ډېر ډاډمن معلومات د **رباتک** له ډبرلیک څخه تر لاسه کولی شو. دا ډبرلیک د **کنشکا** د امپراطورۍ په لومړیو کې لیکل شوی دی. دغه ډبرلیک د **کوشاني** امپراطورۍ په اړه ګڼ شمېر معلومات لري.

**کجولا کدفیسس** د کوشانیانو د امپراطورۍ بنسټ ایښودونکی و. نوموړي په پیل کې څلور لوی ولایتونه د بلخ په شاوخوا کې سره یو کړل او په ۴۰ میلادي کې یې د **کابل** او **غزني** سیمې ونیولې. کجولا کدفیسس پر لرغوني آریانا او باختر باندې ۴۰ کاله واکمن و. نوموړي په دې موده کې وکولی شول چې د لرغوني افغانستان په دننه کې د **پارتي** او **یوناني** شاهانو پاتې شونې له منځه یوسي. د کجولا کدفیسس د زمانې زیاتې سیکې له مسو څخه جوړې شوې وې. په دغو مسکوکاتو کې ډېر القاب لکه **دیندار، شهنشاه** او داسې نور کیندل شوي دي. نوموړی د اتیا کالو په عمر مړ شو.

له کجولا کدفیسس څخه وروسته واک ویما تکتو ته ورسېد. د رباتک د لیکنې پر بنسټ **ویما تکتو** د کجولا کدفیسس زوی و.

تر ویما تکتو وروسته د ده زوی ویما کدفیسس تر ۱۲۷ زېږدیز کال پورې واکمن و. ویما کدفیسس د کوشانیانو لومړنی ټولواک و چې د هېواد پولې یې په سوېل کې د ګنګا تر سیند پورې پراخې کړې. ویما کدفیسس له **چین** سره دوستانه اړیکې درلودې. د **روم** د امپراتور **تراجان** دربار ته یې یو سفیر ولېږه. او له هغوی سره یې د سوداګرۍ اړیکې ټینګې کړې. په دغه دوره کې د روم د سکې جوړولو هنري اغېز هم څرګند دی.



د وریښمو لار

تر ویماکدفیسس وروسته د هېواد اداره د ده زوی **کنشکا** ته ورسېده. کنشکا د لرغوني افغانستان په تاریخ کې د ډېر واک خاوند او نامتو امپراطور و. د ده د امپراطورۍ حدود په ختیځ کې د **هندوستان تر بنارس** او لوېدیځ کې د **پارتیانو** د امپراطورۍ تر بریده او په شمال کې تر **کاشغر** او **یارکند** پورې رسېدلي وو. په ختیځ کې یې له چین او په لوېدیځ کې یې له روم له سره سوداګریزې اړیکې درلودې.

د **وریښمو** نامتو لاره د کوشانیانو، په ځانګړې توګه د کنشکا د واکمنۍ پر مهال نړیوال شهرت وموند. هغه د خپلې امپراطورۍ د ادارې لپاره دوه اداري مرکزونه درلودل. چې په ژمي کې یې **پېښور** او په اوړي کې یې **بګرام** ټاکلي و.

کنشکا په ۱٤۷ میلادي کال کې سترګې له نړۍ څخه پټې کړې. د هغه زامنو د پلار ستره امپراطوري په خپل منځ کې ووېشله. په هر ګوټ کې هر څوک واک ته ورسید.

د **کوشاني** واکمنۍ وروستنۍ امپراطور چې د کوشانیانو تر ولکې لاندې سیمو باندې پوره واکمن و، د **واسشکا** یا **واسودیوا** په نامه یادېده. نوموړي په ۱۸۲ زېږدیز کال کې د امپراطورۍ واګې تر لاسه کړې. سره له دې چې تر واسودیوا وروسته د کوشانیانو ستره امپراطوري د شهزادګانو ترمنځ په سیمه ییزو واکمنیو بدله شوه، خو د کوشانیانو واک او ځواک په بېلابېلو ډولونو تر ۲۵۰ زېږدیز کال پورې دوام درلود.

د ځواکمنې ادارې تر ناتوانۍ وروسته سیمه ییزو واکمنانو او امرینو ته د سرغړونې موقع برابر شوه. په پای کې له یوې خوا د **ساساني** سلسلې پوځي فشار او له بلې خوا په هېواد کې دننه د یوه غښتلي مرکزي ځواک نشتوالي دا موقع برابره کړه، چې سیمه ییز امرین او وروسته بیا **یفتلي** امپراطورۍ واک ته ورسیږي.

## د مهال په ترتیب د کوشانیانو مهم امپراطوران

| شمېرې | د امپراطور نوم | د واکمنی مهال | د هغې دورې ځانګړتیاوې |
|---|---|---|---|
| ۱ | کجولا کد فیسیس | له ۴۰ څخه تر ۸۰ زېږدیز | د کوشانیانو د امپراطورۍ بنسټ اېښودونکی چې ۴۰ کاله د لرغوني آریانا او باختر تر ولکې لاندې سیمو باندې واکمن و. |
| ۲ | ویما تکتو | له ۸۰ څخه تر ۱۰۵ زېږدیز | دغه کوشاني امپراتور د لومړي ځل لپاره د رباتک د ډبرلیک له مخې وپېژندل شو. د رباتک ډبرلیک په ۱۳۷۲ لمریز کال کې د بغلان او سمنګان په سیمو کې وموندل شو. |
| ۳ | ویما کد فیسیس | له ۱۰۵ تر ۱۲۷ زېږدیز پورې | د کوشانیانو لومړنی امپراتور و چې د هېواد پولې یې د ګنګا تر سیند پورې ورسولې او د روم امپراتور تراجان دربار ته یې یو سفیر واستاوه. |
| ٤ | کنشکا | له ۱۲۷ څخه تر ۱۴۷ زېږدیز پورې | د کوشانیانو د سلسلې ستر امپراتور و. دده د امپراطورۍ پراختیا په ختیځ او سوېل کې د هند تر ګنګا او بنارس پورې، په لوېدیځ کې د پارتیانو امپراطورۍ پورې او په شمال کې د کاشغر او یارکند پورې رسېده. |
| ٥ | واسودیوا (واسشکا) | له ۱۸۲ څخه تر ۲۲۰ زېږدیز پورې | د کوشانیانو وروستنی امپراتور و چې د دغې سترې امپراطورۍ پر ټولو سیمو یې واکمني درلوده، تر واسودیوا وروسته سیمه ییزو امرینو مرکزي واکمنې له خطر سره مخامخ کړه او سیمه ییز حکومتونه لا هم غښتلي شول. |

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړی ډله دې د رباتک د ډبرلیک په اړه او دویمه ډله دې د کوشاني دورې د مهمو امپراطورانو په اړه خپلو ټولګیوالو ته معلومات ورکړي.

### پوښتنې

۱. د کوشانیانو په اړه تر ټولو ډېرمن معلومات د ............................ ډبرلیک څخه لاس ته راغلي دي.

۲. د کوشانیانو لومړنی امپراطور د ................ په نامه یادیده.

۳. د کوشانیانو د ستر امپراطور په اړه څه پوهېږئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له اسلام څخه دمخه په افغانستان کې د مسکوکاتو او مجسمو انځورونه په خپرونو کې پیدا کړي او بیا دې خپل ټولګي ته وړاندې کړي.

خوار لسم لوست

## بگرام د کوشانیانو د امپراطورۍ سیاسي مرکز


بگرام


هډه


بامیان

**لکه په تېر لوست کې چې مو ولوستل، کوشانیانو د خپلې پراخې امپراطورۍ تر ولکې لاندې سیمې له دوو سیاسي مرکزونو، پېښور او بگرام څخه اداره کولې. په دې لوست کې بگرام، د کوشانیانو د امپراطورۍ د سیاسي مرکز په توگه، هډه د کوشانیانو د فرهنگي مرکز په توگه او بامیان د بودایانو د عقیدتي سیمې په توگه پېژنو.**

اوسنی **بگرام** چې د څلوېښت میلو په واټن د **کابل** د ښار شمال خواته پروت دی، دوه زره کاله دمخه په اوړي کې به د **کوشانیانو** د امپراطورۍ مرکز و. د دغه ښار بنسټ د پوځي مرکز په توگه له میلاد څخه وړاندې په درېمه پېړۍ کې د **سکندر** له لوري اېښي و. هغه مهال بگرام ته د **قفقاز** سکندریه ویل کېده.

د بگرام په کیندنو کې د ودانیو پاتې شونو سربېره په زرگونو تاریخي انتیک آثار او شیان موندل شول. د ودانیو له پاتې شونو څخه دا څرگندېږي چې د بگرام د ښار د ودانۍ پلان د دفاعي سیستم پر بنسټ جوړ شوی و. سره له دې چې سیمه ییزې ځانگړتیاوې لري، د یوناني ودانیو ځانگړتیاوې هم په کې لیدل کېږي. د سیمه ییز ښار د جوړولو لپاره هغه یوناني اصول په نظر کې نیول شوي وو چې د دوو سیندونو د یو ځای کېدلو موقعیت به یې د ښار جوړولو لپاره ټاکه، او د **یونانیانو** د عمراني چارو ځانگړتیا وو. پر دې سربېره د ښار څلورو خواو ته لوی دېوالونه او دفاعي برجونه جوړ شوي وو. د ۱۹۳۷ میلادي کال تر کیندنو وروسته په دغه ځای کې ډېر انتیک تاریخي آثار لکه له لاکو څخه جوړې شوې چیني صندوقچې، مسي او برونزي وړې مجسمې، یوناني او رومي لوښي له هندي عاج څخه جوړې شوې ټوټې، گچې ټوټې او داسې نور موندل شوي دي. دغو ټولو آثارو د هنر په لحاظ ظریف او د کوشانیانو

شاهي کورنۍ پورې تړاو درلود.
موندل شوي آثار او شیان په ښکاره ډول دوه مطلبونه څرګندوي. **لومړی** دا چې د کوشانیانو د سوداګرۍ اړیکې له نورو هېوادونو او لرې سیمو سره تامین شوې وې. د سوداګرۍ کاروانونه له **روم** څخه **چین** ته د **وریښمو** له لارې رسېدل او د دغې نړیوالې لارې عمده برخه د کوشانیانو له امپراطورۍ څخه تېرېده. **دویم** دا چې بګرام د سیاسي مرکز په توګه د هغه مهال یو له هغو سترو نړیوالو مرکزونو څخه و چې د کاروانونو په تګ او راتګ او د سیاسي حاکمیت په تامین کې یې ډېر مهم رول لوبولی دی.


د بګرام له ګچ څخه جوړ شوی د زیوس مډال


عاجي مجسمه، چې له بګرام څخه
ترلاسه شوې ده

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د بګرام پر دفاعي سیستم باندې خبرې وکړي او دویمه ډله دې د بګرام د ښار پر تاریخچې خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱. په ............... میلادي کال کې په بګرام کې کیندنې پیل شوې.
۲. د بګرام د ودانۍ پلان د ............... سیستم پر بنسټ طرح او جوړ شوی و.
۳. د کوشانیانو پر مهال د سوداګرۍ د چارو په اړه په څه پوهېږئ؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د لارو او د لرغوني سوداګرۍ د څرنګوالي په اړه له خپلو مشرانو څخه پوښتنې وکړي او لاس ته راوړي معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

## هډه د کوشانیانو د امپراطورۍ فرهنګي مرکز



په هډه کې د بودايي معبد يو انځور

تاریخي **هډه د جلال آباد** د ښار په سوېل لوېديځه برخه کې کابو د ۱۰ کیلومترو په واټن پرته ده. دغه لرغونی ځای د افغانستان په تاریخ کې د مهمو فرهنګي مرکزونو په توګه ډېر ارزښتناک رول لوبولی دی. دغه پخوانۍ سیمه د سیلانیانو او زیارت کوونکو په تاریخي متونو کې په وار وار یاده شوې ده. چیني زیارت کوونکي **فاهیان** هډه د هیلو په نامه یاده کړې ده. **هیونسنګ** هم هډه د یوه فرهنګي مرکز په توګه یاده کړې ده.

د کیندنو په لړ کې هغه آثار او توکي تر لاسه شوي چې د خپل مهال د حاکمو حالاتو استازيتوب کوي. دا اغېزې د هغه مهال په هنر، مذهب او پر هغو مذهبي ودانیو کې ښکاره شوي چې د هغه مهال د خلکو د ګټې اخیستنې وړ وې.

هډه په لرغوني مهال کې د نوښتونو نامتو ټاټوبی و. د هډې د خلکو په ملاتړ د **بودايي** مذهب نوې طریقه د **هینایانا** په نامه چې د لویې عرداې معنا لري، دود وموند. د لومړي ځل لپاره په هډه کې د بودايي مجسمو د جوړولو موقع برابره شوه. د انګلیسي لرغونپوه سرجان مارشال په باور، په هډه کې د جوړو شویو مجسمو څېرې او بدني جوړښتونه **آريايي** (کوشاني او اسکايي) وو.

دغه ډول فعالیتونو هډه د افغانستان په لرغوني تاریخ کې د فرهنګي مرکز په توګه معرفي کړې ده.
هډه د **ګندهارا** د ښوونځي د مهمو هنري مرکزونو څخه وه. د ګندهارا هنري سبک د منځنۍ اسیا او د لرغوني **هند** په ټولو سیمو کې شهرت لري. په دغه سبک کې تر ټولو دمخه د بودایي مجسمو جوړولو ته پام اوړي. د ګندهارا ښوونځی له دوو سبکونو او هنرونو څخه جوړ شوی دی. د مجسمو د جوړښتي موازنې په ساتلو کې یې له یوناني سبک څخه کار اخیستی و. خو څېره او معنوي هویت یې له هندي بودایي دین څخه اخیستی و.
په هډه کې د هنر او ودانیو بېلا بېل ډولونه تر لاسه شوي، چې ځانګړې ارزښت لري. د هډې په سیمه کې له ګچ څخه جوړې شوې څېرې د هند په حوزه کې له جوړو شوو هیکلونو سره ښکاره توپیر لري.

**په ټولګي کې فعالیت**

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د هډې د نوښت په اړه او دویمه ډله دې د ګندهارا د ښوونځي په اړه خپل معلومات په ټولګي کې وړاندې کړي.

**پوښتنې**

۱. د هډې لرغونې سیمه ولې د فرهنګي مرکز په نامه یاده شوېده؟
۲. د ګندهارا ښوونځی له کوم سبک او هنر څخه جوړ شوی دی؟
۳. هډه په پخوا زمانو کې په کوم نامه یادېده؟

**له ټولګي څخه بهر فعالیت**

زده کوونکي دې د هډې په هکله له خپلو مشرانو څخه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې بیان کړي.

# باميان د کوشانيانو د امپراطورۍ عقيدتي مرکز



د باميانو په سمڅو کې د رنګه انځور ګرۍ يوه بېلګه

**باميان** د هېواد مهمه فرهنګي او تاريخي سيمه ده. د ډېرو هنري او تاريخي آثارو د درلودلو له کبله په **۲۰۰۳** کال کې د نړۍ د فرهنګي ميراث په اداره کې ثبت شوی دی. باميان اوږد تاريخ لري چې د هغه ريښې له ميلاد څخه دمخه او لومړنيو ميلادي پېړيو ته رسېږي. په باميانو کې د لرغونپوهانو څېړنې دا ښيي چې انسانانو له ډېرو پخوانيو زمانو راهيسې له دغې تاريخي سيمې څخه ګټه اخيستې ده. ددغې ادعا لپاره ډېر ثبوتونه موندل شوي دي. د **چيني** مسافرانو ليکنې په دې اړه زيات معلومات د تاريخ ليکونکو په واک کې ورکړي دي. د دې زيارت کوونکو څخه يو هم **هيونتسنګ** و چې په شپږمه ميلادي پېړۍ کې يې باميان ليدلی او د باميانو په اړه يې ډېر ګټور مطلبونه ليکلي دي. د چيني زيارت کوونکي په يادښتونو کې راغلي چې ((د باميان ښار د بودايي مذهب مهم مرکز دی. په دغه ښار کې په لس ګونو بودايي مدرسې شته چې زده کوونکي روزي. د دغې مدرسې استادان زرهاوو تنو ته رسېږي. زيارت کوونکي له ډېرو لېرو ځايونو او بېلابېلو هېوادونو څخه دغه مذهبي مرکز ته راځي.))

په باميانو کې د بودايي دوران ډېرې مجسمې پاتې دي. دغه مجسمې په بېلابېلو اندازو (لويې او وړې) جوړې شوي دي. تر ټولو ستره مجسمه چې د **صلصال** په نامه مشهوره ده، د پنځه پنځوس مترو په جګوالي د غره په بدنه کې جوړه شوې ده. بله مجسمه چې د هغې جګوالی پنځه دېرش مترو ته

رسیږي، د **شمامه** په نامه یاده شوې ده. دا مجسمه هم کابو د یو کیلو متر په واټن له صلصال څخه لري جوړه شوې ده. د هغه په څنګ کې نورې مجسمې هم جوړې شوې، چې پاتې شونې یې د دوو سترو مجسمو د سمڅو په شاوخوا کې شته.

د بامیانو په سمڅو کې سربېره پر مجسمو، زړه وړونکې او ښکلې نقاشۍ هم انځور شوې چې تاریخي او هنري ارزښت یې ډېر دی. په دغو نقاشیو کې د نورو رنګونو تر څنګ له روغني رنګونو څخه هم کار اخیستل شوی دی. دغه نقش او نګار په نړۍ کې تر ټولو لرغونې انځورګرۍ شمېرل شوي، چې په هغه کې روغني رنګ کارول شوی دی.

د بامیانو ارزښت په اقتصادي توګه هم د پام وړ دی. په تېرو زمانو کې د **وربښمو** د لارې سوېلي څانګه هم له بامیانو څخه تېرېده. د سوداګرۍ کاروانونه له **هند** څخه **بلخ** او له بلخ څخه هند ته له همدغې لارې تېرېدل. له دغو کاروانونو سره زیارت کوونکي او هغه زده کوونکي هم ملګري وو چې د مذهبي مراسمو د تر سره کولو لپاره او یا د بودایي دین د اصولو د زده کولو لپاره بامیانو ته راتلل.





## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د بامیانو د مهمو تاریخي آثارو په اړه او دویمه ډله دې د هیونتسنګ د لیکنو په اړه په ټولګي کې توضیحات ورکړي.



## پوښتنې

۱.هیونتسنګ د بامیانو په اړه څه لیکلي دي؟
۲.د بامیانو د رنګه نقاشیو په اړه څه معلومات لرئ؟
۳.بامیان د ................................ له لورې د نړیوالو کلتوري میراثونو په توګه ثبت او منل شوی دی.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له خپلو میندو او پلرونو څخه د بامیانو د سترو مجسمو په اړه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې ووایي.

## آیا یفتلیان پېژنئ؟



د سوریا مجسمه د کابل د خیر خانې مېنې له کشفیاتو څخه

د یفتلي پاچاهانو سکې چې په افغانستان کې موندل شوې دي

مخکې له دې چې **یفتلیان** د یوه غښتلي دولت په توګه د لرغوني افغانستان پر اوضاع باندې واکمن شي، د افغانستان په لوېدیځ کې د **ساساني** امپراطورۍ بنسټ ایښودل شوی و. د **واسودیوا** تر واکمنۍ وروسته په افغانستان کې د **کوشانیانو** امپراطوري د سیمه ییزو واکمنیو او ګډوډیو سره مخامخ وه. په دغه موقع کې ساسانیانو د کوشاني امپراطورۍ ځینې سیمې د وقفه یي جګړو په ترځ کې ونیولې او څه موده وروسته د خلکو د مقاومت او ټینګښت په پایله کې شاتګ ته اړ شول. د ساسانیانو د پرله پسې بریدونو له امله په افغانستان کې یفتلیانو ته دا موقع برابره شوه، چې د **هندوکش** په شمالي سیمو کې خپل واک ټینګ کړي.

یفتلیان په تاریخي متونو کې د **هفتالیان- یفتلیان** او **خوینت به نومونو** او **عربانو** بیا د **هیاطله** په نامه یاد کړي دي. د پرکیپوویس په نامه **بیزانسي** تاریخ لیکونکی چې د یفتلیانو پر مهال یې ژوند کاوه، د هغوی په اړه لیکي: هفتالیانو له ژېړ نژاد سره توپیر درلود. هغوی سپین پوستکي او په عین وخت کې مهذب مدني خلک وو.

د یفتلیانو لومړنی ټولواک د **ایفتالیتو** په نامه پېژندل شوی چې په ٤٢٥ میلادي کال یې په اوسني **تخار** کې د ټولواکۍ خول پر سر کېښود. د نوموړي د واکمنۍ حدود له **بدخشان** څخه تر **بلخ** او **سغدیانه** پورې رسېدل. تر ده وروسته د ده زوی **اخشنور** واک ته ورسېد. نوموړي د **هرات** ښار تر خپلې ولکې لاندې راووست. له ساسانیانو سره په یوې جګړې کې بندي شو. خو **فیروزشاه ساساني** نوموړی د دې

لپاره چې فرمانبرداره پاتې شي، وبخښنه. د فیروزشاه دغه کار نتیجه ورنکړه او اخشنور څلور ځلې نور هم د خپل هېواد د دفاع لپاره له فیروزشاه سره وجنګید، چې دا ټولې جګړې د یفتلیانو په ګټه وې.
اخشنور د خپلې امپراطورۍ د پراختیا لپاره پرله پسې کوښښ وکړ. د **هندوکش** سوېلي برخې لکه **کابل**، **غزني** او **هلمند** یې تر خپلې ولکې لاندې راوستې. له هغه وروسته ډېر یفتلي قبایل د هندوکش په سوېلي برخو کې مېشت شول. دغو قبیلو وروسته د **زابل شاهانو** په نامه د افغانستان په لرغوني تاریخ کې ستر رول ولوباوه. د **تورامانا** او **مهراکولا** نومونه د یفتلیانو په تاریخ کې ډېر مهم ګڼل شوي.
تورامانا د یفتلي امپراطورۍ سیمې تر **شمالي هند** پورې ورسولې. نوموړي په هند کې د نورو سیمو د نیولو له پاره خپل لښکر په **سیالکوټ** کې چمتو کړ او د **سکاندا** او **ګوپتا** سیمې یې ونیولې. د **ګوالیار** ډبر لیک کې یې د هغه نوم (**تورامانا مهاراجاه زابلي پاچا**) لیکلی دی. تر تورامانا وروسته دهغه زوی مهراکولا واک ته ورسید. نوموړي هم د امپراطورۍ د پراختیا له پاره کوښښ وکړ او ډېرې سیمې یې تر خپلې اداري لاندې راوستې. د ګوپتا پاتې شوني یې په مرکزي هند کې له منځه یووړل. خو څه موده لا تېره شوې نه وه چې د ګوپتا پاتې شوني یو ځل بیا سره یوځای شول او په ۵۲۸ میلادي کې یې د یفتلیانو واکمني په مرکزي هند کې له خطر سره مخامخ کړه.
یفتلیان د بودایي دین پر خلاف وو. یوشمېر بودایي عبادت ځایونه یې وران کړل. هغوی په رڼا عقیده درلوده او لمر به یې لمانځه. دغه مطلب د یفتلیانو د دوران په ډبرلیک کې څرګند دی. په یفتلي مسکوکاتو کې د جګې ونې او لوړې پوزې لرونکي او افغاني بڼې څېرې کیندل شوي دي. غوږوالۍ یې درلودې او جامې یې د ننیو، کوچیانو په شان وې. د هغوی په مسکوکاتو کې د زور او سور (زمیندارو) د عبادت ځایونو څخه یادونه شوې، چې د لمر لمانځنې په معنا و. هغوی په مسکوکاتو کې هم د اورتونونو انځورول منعکس کړي دي. د لمر د رب النوع مجسمه (**سوریا مجسمه**) چې د خیرخانې مېنې له کوتله پیدا شوه، د هغه مهال د عقیدې ډېره ښکاره بېلګه ده.
لنډه دا چې د کوشانیانو او یفتلیانو پاتې شوني لکه **زابل شاهانو، کابل شاهانو،** د **بامیان شیرانو، سوریانو** او داسې نورو د عربانو د لښکرو تر راتګ پورې د افغانستان پر بېلابېلو سیمو واکمنې درلوده.
په عربستان کې د اسلام د مبارک دین تر خپرېدو وروسته عربي لښکرې افغانستان ته ورسیدې. په دغه موده کې به کله عربان د افغانستان پر بېلابېلو سیمو واکمن وو او کله به ځایي امیران واکمن وو. دوې پېړۍ وخت یې ونیو، چې په افغانستان کې د خپلواکو اسلامي حکومتونو د رامنځته کېدلو موقع برابره شوه.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د یفتلیانو د سیاسي اوضاع په اړه خبرې اترې وکړي او دویمه ډله دې د یفتلیانو د مذهبي وضعې په اړه خپلو ټولګیوالوته معلومات ورکړي.

## پوښتنې

۱.یفتلیان په کومو نومونو یاد شوي دي؟
۲.د مهراکولا په اړه څه پوهېږئ؟
۳.د یفتلیانو د مذهب په اړه څه پوهېږئ؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له علماوو څخه د منسوخ شویو دینونو په اړه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې بیا په ټولګي کې بیان کړي.

# دریم څپرکی

## د لرغوني نړۍ تمدنونه

-آیا د مصر د تمدن په اړه معلومات لرئ؟
-د بین النهرین له پخواني تمدن سره آشنا شئ!
-آیا د فارس د تمدن په اړه معلومات لرئ؟
-د هند له تمدن سره آشنا شئ.
- آیا د چین له تمدن څخه خبر یاست؟
-آیا پوهېږئ چې یوناني تمدن څنگه پیل شو؟
آیا وریدلي مو دي چې د پخواني روم امپراطورانو ته يې د اروپا واکمنان ویل؟



# د دریم څپرکي موخې

په دې څپرکي کې زده کوونکي د مصر او بین النهرین د تمدن ځانګړنې زده کوي. د فارس تمدن پېژني. د هند تمدنونه زده کوي. د چین له تمدن سره آشنا کېږي. د یونان تمدن پېژني او د روم د تمدن په اړه معلومات پیدا کوي.



## ایا د مصر د تمدن په اړه معلومات لرئ؟



د مصر اهرام

د **مصر** هیواد په **افریقا** کې پروت دی. تاریخ لیکونکي باور لري چې د **نیل سیند** په مصر کې د لومړني بشري مدنیت د پیدایښت مهم عامل و. په پخوانۍ زمانه کې مصري وګړي په لومړي ځل وتوانېدل چې انځوریز لیک رامنځ ته کړي. په دې لیک کې هره نښه یو بیان ته ځانګړې شوې وه. **یونانیانو** دا لیک د **هیروغلیف** په نامه یاد کړ چې معنا یې سپېڅلې حکاکي ده. دا لیکونه یې پر ډبرو، لرګیو، پوټکو او اوبدل شویو ټوکرانو لیکل. خو د **پاپیروس** کاغذونه د دې ډول لیکنو لپاره زیات کارول شوي دي.

د مصري ودانیو هنر د لرغونې نړۍ په عجایبو کې راځي چې مصري اهرامو نه یې ښې بېلګې دي په مصر کې تر ټولو ستر هرم د **کیوپس** په نامه یادیږي. دا هرم د شلو (۲۰) کلونو په موده کې جوړ شوی دی.

په پخواني مصر کې تاریخي بحثونه زیاتره د **فرعونیانو** په اړه دي. مصریانو به خپلو پاچاهانو ته **فرعون** یا **لوی کهول** (کورنۍ) وایه.

په پخواني مصر کې له لرغونې کورنۍ نه بیا د فرعونیانو تر درېم دوران پورې نولس تنو پاچاهانو

واکمني درلوده. مصريانو له خپلو گاونډيانو سره سوداگريزې اړيکې کړې. ددغه مطلب ثبوت په مصر کې د افغانستان د لاجوردي ډبرو شتون و چې تر ميلاده درې زره کاله پخوا هلته رسېدلې وې. د مصر وروستى فرعون د **پسماتيک** په نامه يادېده چې **هخامنشيانو** تر ميلاده ۵۲۵ کاله وړاندې له منځه يوور. د هخامنشيانو واکمني يونانيانو په ۳۳۶ ق م کال کې له منځه يووړه. مصري يونانيان روميانو په شا وتمبول. او **روميان** بيا په اومه ميلادي پېړۍ کې مسلمانانو له ماتې سره مخامخ کړل.

| شمېره | د کورنۍ نوم | د واکمنۍ دوره |
|---|---|---|
| ۱ | لرغوني کورنۍ | ۳۲۰۰ تر ۲٦٦٥ تر ميلاد پخوا |
| ۲ | د فرعونيانو لومړنۍ کورنۍ | ۲٦٦٤ تر ۲۱۵۵ ترميلاد پخوا |
| ۳ | د فرعونيانو د لومړنۍ کورنۍ د واکمنۍ پای | ۲۱۵٤ تر ۲۰۵۲ تر ميلاد پخوا |
| ٤ | د فرعونيانو دوهمه دوره | ۲۰۵۲ تر ۱۷۸٦ تر ميلاد پخوا |
| ۵ | د فرعونيانو دوهمې دورې پای ته رسېدل | ۱۷۸۵ تر ۱۵۵٤ تر ميلاد پخوا |
| ٦ | د فرعونيانو دريم پېر | ۱۵۵٤ تر ۱۰۷۵ تر ميلاد پخوا |


مصري فرعون



## په ټولگي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د انځوريز ليک په اړه او دوهم گروپ دې د مصريانو د ودانيو د پرمختگ په اړه معلومات وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د مصري انځوريز ليک په اړه څه پوهېږئ؟

۲- د مصريانو د معمارۍ په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ!

۳- د مصريانو د سوداگريزو اړيکو په اړه څه پوهېږئ؟



## له ټولگي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې په خپل کلي کور کې د مصريانو په اړه کيسې وپوښتي او تر لاسه کړي معلومات دې ټولگيوالو ته ووايي.

## د بین النهرین له پخواني تمدن سره آشنا شئ



د میخي لیک انځور



اشور بناپال پاچاه

هغه جغرافیایي حوزه چې د دوو سیندونو (**دجلې او فرات**) ترمنځ پرته ده، د **بین النهرین** په نامه یادېږي. تاریخ لیکونکي باور لري چې د نړۍ ډېر پخوانی مدنیت په بین النهرین کې منځته راغلی دی. د دجلې او فرات: سیندونو څنډو د تمدن د منځته راتلو او ودې ډېرې ښې زمینې درلودې. ځینې لرغون پوهان باور لري چې د **نوح**عليه السلام د مهال توفان په بین النهرین کې پېښ شوی دی.

د بین النهرین یو ډېر لرغوني ځای د (**تل حسونا**) په نامه یادېږي. دا لرغوني سیمه تر میلاده پنځه زره کاله پخوا یو لوی کلی و چې وګړو یې د غلو او دانودکرلو سره آشنایي درلوده. هغوی د خلکو د ډېروالي له امله سویلي بین النهرین ته کډوال شول. هلته یې د نوي تمدن زمینه برابره کړه چې د **سومریانو د تمدن** په نامه یادېږي. د همدې تمدن وګړو د لومړي ځل لپاره یو ځانګړې لیک دود رامنځته کړ چې د میخي لیک په نامه یادیږي.

په بین النهرین کې یو بل مهم تاریخي سیاسي مرکز «**اشور**» و. په دې ځای کې ځواکمن پاچاهان منځته راغلل او ډېرې سیمې یې تر خپل واک لاندې راوستلې. لومړنی اشوري پاچا **لومړی سارګون** نومېده. نوموړي تر میلاده شاوخوا ۱۹۰۰ کاله پخوا د اور ښار تر خپل واک لاندې کړ. دا سلسله تر اوومې میلادي پېړۍ پورې د بین النهرین په بېلابېلو سیمو واکمنه وه. د اشور وروستنی پاچا **اشور**

**بناپال** نومېده چې زیاتې سیمې یې په خپله واکمنۍ کې شاملې کړې. بناپال له اعلامیانو سره جګړه وکړه. هغوی ته یې ماته ورکړه او د هغوی د واکمنۍ سیمې یې هم تر خپل واک لاندې راوستې.

په بین النهرین کې بل تاریخي ښار **بابل** دی. د بابل واکمنانو د بین النهرین پر ټولو سیمو واکمني درلوده. تاریخ لیکونکو د بابلیانو د واکمنۍ دوران پر دریوو پړاونو وېشلی دی.

د لومړي پړاو ډېر مهم امپراتور **هامورابي** نومېده. هامورابي د خپلې واکمنۍ پر مهال خپلو خلکو ته قانون جوړ کړ چې د همورابي قانون په نامه یادېږي. په دې قانون کې د خلکو د ژوند ټولو چارو ته پام شوی و. له مجازاتو نیولې د کروندګرۍ او ګرځندویۍ تر چارو او مسافرتونو پورې ټول اړخونه یې تر سیوري لاندې راوستي وو.

د بابلیانو دوهم پړاو د **کاسیانو** د قوم د واکمنۍ مهال دی. کاسیانو د هامورابي واکمني پای ته ورسوله او تر هغه وروسته پنځه سوه کاله پرله پسې د بین النهرین پر سیمه واکمن وو. د بین النهرین لوی ښارونه او نورې سیمې یې هم تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستلې، د ایلام او شوش مهم ښارونه یې ونیول. د **ایلام** ښار اوسېدونکو له میلاده تر یوولسمې پېړۍ وړاندې د یوه ځواکمن برید په ترځ کې د کاسیانو واکمني پای ته ورسوله.

د بابل درېیم پړاو هغه مهال پیل شو چې کلدانیان واک ته ورسېدل. پوځي افسر نبیولا نصر لومړنی کلداني واکمن و چې بابل یې تر میلاده شپږ پېړۍ وړاندې ونیو. د دې لړۍ وروستنی پاچا د **بخت نصر** په نامه یاد شوی چې د **یهودیه** سیمې یې تر خپل واک لاندې کړې. له بخت نصر وروسته د **کلدانیانو** واکمني هخامنشیانو له منځه یووړه. تر هخامنشیانو وروسته د بین النهرین پر سیمو **ساسانیان** واکمن شول او ساسانیان بیا په اوومه میلادي پېړۍ کې مسلمانانو له منځه یووړل.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر درېوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د تل حسونا په اړه، دویمه ډله دې د اشور په اړه او درېیمه ډله دې د بابلیانو په اړه په خپلو ډلو چې بحث وکړي او معلومات دې نورو ټولګیوالو ته بیان کړي.

## پوښتنې

- بین النهرین چېرته دی؟
- د اور په اړه چې څه معلومات لرئ، وې وایئ.
- د هامورابي قانون په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپل جومات له ملا امام څخه د نوح (ع) د توفان په اړه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې بیان کړي.

## آیا د فارس د تمدن په اړه معلومات لرئ؟



د کوروش مقبره

څنګه چې د کلهوالي په برخه کې یادونه وشوه، په بلخ کې د آریایانو شمېر زیات شو او په مهاجرت یې پیل وکړ. یو شمېر یې د شمالي هند پر لور، یو شمېر یې د آریانا په دننه کې او ځینو یې لویدیځ پلو ته په کډه کولو پیل وکړ. هغه آریایان چې لویدیځ لور ته کډه شول، لومړی ایران، وروسته ترکیې او په پای کې اروپا ته ورسېدل. کوم شمېر چې په ایران کې مېشت شول د آریانا د تمدن د لړۍ پر دوام یې د فارس په نامه یو بل تمدن رامنځ ته کړ.

**سیالک، جیروفت** او **شهر سوخته** د **ایران** نامتو لرغوني سیمې دي. د سیالک وګړو د خپلو ګاونډیو سیمو لکه د **افغانستان** د **منډیګک** اوسېدونکو او د **هند** د **موهنجودارو** او **هړپې** له خلکو سره او هم یې په لوېدیځ کې د **دجلې** او **فرات** د سیندونو د شا او خوا له اوسېدونکو سره اړیکې درلودې.

د ایران په لوېدیځ کې تر میلاده لس پېړۍ وړاندې د ماد وګړو د پخواني پارس د لومړني دولت زمینه رامنځته کړه. د **هیرودت** په وینا «**دیاکو**» نومي شخص د ماد قبایل تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستل. له هغه څخه وروسته د دې لړۍ دري پاچاهان واک ته ورسېدل. د مادانو واکمني د **کوروش** په لاس له میــلاده د مخه په ۵۵۳ کال کې راوپرځېده.

د **مادانو** د دولت ختمېدل په ایران کې د **هخامنشیانو** د واکمنۍ پیل و. لوی کوروش له میلاد څخه ۵۵۸ کاله وړاندې د هخامنشیانو د دولت بنسټ کېښود. کوروش د هخامنشیانو د دورې یو ډېر مشهور پاچا و.

له کوروش څخه وروسته د هغه زوی «**کمبوجه**» واک ته ورسېد. له هغه وروسته د هخامنشيانو اته پاچاهان واکمنی ته ورسېدل. بالآخره تر میلاده ۲۴۸- ۳۳۵ کاله پخوا د هخامنشيانو وروستنی پاچا **درېم داریوش** د مقدوني **سکندر** د یرغل په ترځ کې ماتې وخوړه او د دې لړۍ واکمني هم پای ته ورسېده.

د سکندر له مړيني وروسته د **سلوکیدیانو** لړۍ واک ته ورسېده، چې **رومیانو** راوپرځوله او له هغه وروسته رومیان د فارس پر یوې خوا او **اشکانیان** د فارس پر بلې خوا واکمن وو، چې تر میلاده دوه پېړۍ وړاندې **ساسانیانو** له لوري له ماتې سره مخامخ کړل.

ساسانیان په فارس کې تر اسلام وړاندې د امپراطوریو وروستنی لړۍ وه. د ساساني کورنی بنسټ ایښودونکي **بابکان** یاد شوی دی. ساسانیانو زردشتي مذهب درلود. تر بابک وروسته د هغه زامن شاپور او اردشیر بابکان په درېمه میلادي پېړۍ کې واک ته ورسېدل. اردشیر د خپلې واکمنۍ په دوران کې د سیمې په پراختیا کې ډېرې برياوې تر لاسه کړې. د هغه ځای ناستي لومړی په خپلو منځونو او بیا له گاونډیو هېوادونو سره په جګړو بوخت وو.



د ساسانیانو یو مشهور پاچا **دویم شاپور** په شپاړس کلنی کې واک ته ورسېد او اویا کاله یې واکمني وکړه. دویم شاپور د ساسانیانو تر پیدایښت پخوا د پاچا په حیث منل شوی و. د ساسانیانو وروستنی پاچا **درېم یزدگرد** وچې د ده واکمني په ٦٤١ میلادي کال کې مسلمانانو پای ته ورسوله.



## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د هخامنشيانو په اړه او دویمه ډله دې د ساسانیانو په اړه خپل معلومات ووایي.



## پوښتنې

۱- د سیالک د لرغوني سیمې او له گاونډیو سیمو سره یې د اړیکو په اړه څه پوهېږۍ؟

۲- د هخامنشيانو د امپراطورۍ بنسټ ایښودونکی څوک و؟

۳- د فارسیانو د سلسلې وروستني امپراطوران په کومو نومونو یادېدل او د هغې لړۍ د وروستني پاچا نوم واخلئ.



## له ټولگي څخه بهر فعالیت:

زده کوونکي دې د فارس د تمدن په اړه له خپلو ښوونکو څخه معلومات راټول او په ټولگي کې دې وړاندې کړي.

# د هند له تمدن سره آشنا شئ



دغه انځور د موهنجودار د ښار پاتې شونې ښيي.

تاریخ لیکونکو د **هند** لرغونی تمدن له **هړپه** او **موهنجودارو** څخه پیل کړی. تر میلاده درې زره کاله پخوا د هند په شمال لویدیځ کې د یوه مدنیت بنسټ کېښودل شو چې په سیمه کې بې ساری یاد شوی دی. د هړپې وګړو د غنمو کرنه زده وه. فلزي وسایل یې جوړول او د څارویو رمې او ګلې یې روزلې.
د لرغوني هند بل ښار موهنجودارو و. دغه ښار هم د **سند** د سیند په څنډه آباد شوی و. ددغو وګړو پاتې شوي آثار په ډاګه کوي چې په سل ګونو زره خلکو په دې ښار کې ژوند کاوه. یو پوړیز او دوه پوړیز کورونه یې جوړول. د نهرونو او کانالونو سیستم یې د کورونو په جوړولو کې کار وه. خو د اوبو ویالې یې هغسې جوړې کړې وې چې صافې او پاکې اوبه له یوه مرکز څخه رابهېدلې. استوګنځایونه، ګدامونه او زېرمتونونه یې لرل.
د هند تېر شوی لرغونی تاریخ د **ماها بهاراتا** او **رامایانا** پر سرچینو ولاړ دی. دغه تاریخي اسناد ډېر زیات پر هغو سیمو بحث کوي چې د **همالیا** او **ګنګا** د سیند په سیمو پورې اړه لري. د دې سرچینو په بحثونو کې قبیلوي ژوند، ټولنیز نظام او د غلامانو او مالکانو بحثونه مطرح شوي دي. له دې اسنادو څخه په ډاګه کېږي چې د هند تېر لرغونی تاریخ له دغو سیمو راپیلېږي.
**آریایان** د لرغوني هند په ځمکه لومړني نوي راغلي خلك وو. د دې دورې ډېر زیات معلومات د ویدي سرودونو په منابعو کې شته. د هند خاورې ته د آریایانو راتلل تر میلاده یو زرو پنځه سوه کاله

پخوا ګډل کېږي. هغوی په سر کې خاروي ساتل. وروسته له کرنې او ځمکوالۍ سره آشنا شول. د آریایانو په خواکې نورو وګړو چې **دراویدیان** نومېدل هم ژوند کاوه. هغوی د هند ډېر بېوزله خلک وو. د آریایانو له راتګ څخه مخکې هندي ټولنې څلور ټولنیزې طبقې درلودې. چې د **کشتریه، برهمن، ویسیه** او **شودرا** په نامه یادېدې.

د هندي ټولنې د بودایي قانون بنسټ له میلاده شپږ پېړۍ دمخه **ګوتاما** (**بودا**) په واسطه د هند په شمال کې کېښودل شو. هغه خلکو ته د عبادت، ټولنیزو قربانیو او اخلاقي او اقتصادي مسائلو په اړه لارښوونه کوله. د **موریایي** څواکمن دولت له تأسیس څخه وروسته د بودایي دین د پرمختګ لپاره زیاته زمینه برابره شوه.

د موریاني امپراطورۍ بنسټ ایښودونکی **چندرا ګوپتا** له میلاده ۳۲۲ کاله وړاندې د ناندا د کورنۍ څخه واک ترلاسه کړ. د **ګوپتانیانو** نومیالی امپراتور د **اشوکا** په نامه یادېده چې د بودایي دین پیرو و. ده د بودایي دین په پراختیا کې ډېر زیار وایست.

د ګوپتانیانو امپراطوري په لومړۍ میلادي پېړۍ کې د کوشانیانو تر یرغلونو لاندې راغله او مخ په زوال شوه. له هغه وروسته د ګوپتانیانو سیمه ییزو واکمنیو خپل حاکمیت ته په بېلابېلو سیمو کې دوام ورکړ. تر هغه چې په ۵۰۰ میلادي کال کې هندي قومونو له شمال لوېدیځ څخه یرغل راوړ او د ګوپتانیانو ټول سیمه ییز حکومتونه یې راوپرځول او د (**هارشا**) په نامه واکمنۍ ته ورسېده. په هند کې تر شاوخوا ۶۰۰ میلادي کال پورې درې دولتونو واکمني درلوده چې له هغې ډلې څخه یوه هم **راجپوتان** وو چې د هند په شمال کې یې واک چلېده. هند د دې لړۍ د واکمنۍ په دوران کې د مسلمانانو د پرله پسې یرغلونو لاندې راغی. د هغوی یرغلونو تر هغه پورې دوام وکړ، چې په لسمې میلادي پېړۍ کې د **غزنویانو** او **غوریانو** تر مشرتابه لاندې خپلواک اسلامي دولتونه پر هند واکمن شول.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د هند د لرغوني مدنیت په اړه او دویمه ډله دې د موریایانو په اړه معلومات وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱. کومې لرغونې سیمې د هند د لومړنیو مدنیتونو استازیتوب کوي؟
۲. په لرغوني هند کې څو ټولنیزې طبقې موجودې وې؟
۳. د ګوپتانیانو مشهور امپراطور چې بودایي دین ته یې عقیده لرله څه نومېده؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د هند او د هند د تاریخ په اړه یو مطلب ولیکي او خپلو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

## آیا د چین له تمدن څخه خبر یاست؟



تر تاریخ وړاندې دورې د چیني مجسمو انځور

د شلمې پېړۍ تر پیله پورې د **چین** د پخوانیو انسانانو د ژوندانه په اړه څېړنې نه وې شوې. د چین وګړو باور درلود چې که څوک په تاریخي او لرغونو سیمو کې د سپړنو کار وکړي، هغه به په هغې ناروغۍ اخته شي چې له امله یې دا پخواني کسان مړه شوي. نو ځکه یې د څېړنو او سپړنو له چاره چا ته اجازه نه ورکوله. د شلمې پېړۍ په سر کې په چین کې د ځینو لرغونو سیمو سروې پیل شوه چې په پایله کې د تاریخي او له تاریخه وړاندې دورو ډېر آثار په لاس ته راغلل.

د **جاوکوتیان** په سمڅو کې د چیني انسانانو نمونې لاس ته راغلي دي. دغه لرغونې سیمې د **پکن** ښار ته څېرمه پرتې دي. د لرغون پوهانو په باور، چیني انسانانو شاوخوا پنځه ویشت زره کاله پخوا د همدې پکن په سیمو کې ژوند کاوه.

د چین په نورو لرغونو سیمو کې د **یانګ شاي** په نامه د انساني کلتور بېلګې کشف شوي چې د هغه تاریخ له میلاده څلور زره کاله پخوا زمانې ته رسېږي.

د چین د خلکو لومړنۍ امپراطورۍ د **شانګانو** په نامه یاده شوې چې دې لړۍ له میلاده اوولس پېړۍ وړاندې بیا تر لسمې پېړۍ پورې د چین پر لوی هېواد واکمني درلوده. په چین کې د ستورو

د پېژندګلوۍ لومړنی نښې د شانګانو په دورې پورې اړه لري. پر دې سربېره یې د شپو او ورځو او د میاشتو د وېش سیستم هم کارولی دی.
د چین د تاریخ یوه بله پخوانی مهمه کورنی د **چو** کورنی وه. کله چې له دولسمې پېړۍ څخه وروسته د شانګانو دولت مخ په ړنګېدو شو او د چو کورنۍ د پیدایښت زمینه برابره شوه. د چو قبیلې مشر د «**او وانګ**» په نامه تر میلاد وړاندې لسمې پیړۍ کې د شانګانو دولت ته ماتې ورکړه.
د چو کورنۍ د امپراطورۍ په پراختیا کې ډېر زیار وویست. د خپلې شاوخوا سیمه ییزو حکومتونو ډېرې سیمې یې ونیولې تر میلاده پخوا اوومې پېړۍ پورې د هغوی واکمنی دوام درلود. د چو کورنۍ په وروستني دوران کې د هغوی تر واکمنی لاندې ځمکو کې تر یو زر زیات سیمه ییز حکومتونه جوړ شول چې په خپلو کې به هر وخت سره جنګېدل. په دې ترتیب، د چود کورنۍ اولادونو تر میلاد دمخه دویمې پېړۍ پورې د چین په بېلابېلو سیمو کې واکمني درلوده. د چو کورنۍ له واکمنۍ څخه وروسته د **تسه این** کورنۍ ته د واکمنۍ زمینه برابره شوه. هغوی له میلاده وړاندې د۲٤٦ تر ۲۰۷ پورې د چو د امپراطورۍ په زیاتو سیمو واکمني ترلاسه کړه.
د «**هوان یې**» په نامه د دې لړۍ لومړني پاچا واک ترلاسه کړ او نوي قوانین یې خپاره کړل. هغه چین په شپږ دېرش ولایتونو ووېشه. پخواني القاب یې له منځه یوړل. چیني ټولنه یې پر دوو برخو ووېشله چې د **خواصو** او **عوامو** د طبقو په نومونو یادېدلې. د پخوانیو او وروستیو **هانانو** کورنۍ د **تسه این** پر پاتې شوې امپراطورۍ تر ۲۲۰ میلادي کال پورې واکمني وکړه چې د چین په تاریخ کې د منځنیو پېړیو د دورې پیل پېژندل شوی دی.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې په چین کې د ډېرو پخوانیو انسانو په اړه او دویمه ډله دې د چین د پخواني تاریخ د درېو مهمو کورنیو په اړه معلومات وړاندې کړې.

## پوښتنې

۱. په چین کې لرغوني ښځې ولې وروسته پیل شوې؟
۲. د چین تر ټولو پخوانیو انسانانو چېرې ژوند کاوه؟
۳. د چین په پخواني تاریخ کې درې مهمې کورنۍ لنډې معرفي کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د چین او چیني توکو په اړه له خپلو مشرانو څخه وپوښتي او خپل معلومات دې ټولګي کې دې ووایي.

## آیا پوهیږئ چې یوناني تمدن څنګه پیل شو؟



د لرغوني یونان یوه آبده

یوناني تاریخ لیکونکي توسیدیدس چې تر میلاده څلور پېړۍ پخوا یې ژوند کاوه، چې باور درلود او د پخوانیو کلیو او ښارونو پاتې شوني د مخکنیو قومونو د کارونو زېږنده ده، چې د خلکو ډېرې فولکلوریکې کیسې داستانونه او بحثونه په هغوی پورې اړه لري. په نولسمې پېړۍ کې څېړنې د پخوانیو یوناني خلکو او د مدیترانې د ځنډو د وګړو په اړه د داستانونو او څېړنو له مخې پیل شوي دي.

د «میسني» دوران د یوناني تمدن او پخواني کرت څلانده تاریخ دی. دغه تمدن تر میلاده پخوا په شپاړسمې پېړۍ کې پیل شو او تر لسمې پېړۍ پورې یې دوام وکړ. دغه تمدن د اخه یې ټبر پورې اړه درلوده چې د «پلیپونیز» وګړو سره ونښتل او ډېرې سیمې یې ونیولې. هغوی بزګران وو. غنم، اوربشې او جوار یې کرل او د برونزو له وسایلو څخه یې کار اخیسته. د ښارونو د دفاع لپاره به یې جګ دېوالونه جوړول. دا دوران له میلاده دمخه په لسمې پېړۍ کې د «دوریانو» د یرغل په پایله کې پای ته ورسېد.

دوریانو له میلاد څخه وړاندې لسمه پېړۍ کې په لرغوني یونان کې واک تر لاسه کړ. ځینې تاریخ لیکونکي دغه دوره د وېښتې دورې پیل هم بولي. له دې سره سره چې دوریانو د کلتور پرمختګ ته پام نه درلود، خو هغه مشهورې حماسي کیسې چې د «**الیاد او ادیسه**» په نامه یادېږي په همدې دوره کې منځته راغلي دي. ړانده یوناني شاعر «**هومر**» دا حماسي داستانونه تنظیم کړي وو. دغو داستانونو تر میلاده پخوا له دولسمې نه تر اتمې پېړۍ زیاتی پېښې بیان کړې دي. د دوریانو له واکمنۍ سره جوخت په یونان کې د **اسپارتانو** د دولت بنسټ کېښودل شو. د لرغوني یونان د تمدن یوه ښکاره ځانګړتیا د ډېرو خدایانو ګوتېو شتون و چې د یوناني کیسو له لارې یې شهرت موندلی و.

په یونان کې د پراختیا غوښتنې خوځښتونه له میلاد دمخه له شپږمې او پنځمې پېړۍ سره مصادف وو. د **هلني** مهاجرو د مهم مرکز بنسټ له میلاد څخه وړاندې د شپږمې پېړۍ په اوله نیمایي کې د تور سمندرګي په شمال کې کېښودل شو.

د پنځمې میلادي پېړۍ په وروستیو کې د **پارسیانو** او **یونانیانو** ترمنځ یو په بل پسې جګړې ونښتې. دغو جګړو تر هغې دوام درلود چې **مقدوني سکندر تر میلاده پخوا** له (۳۳۶ تر پورې ۳۲۳ پر **هخامنشیانو** برې وموندهاو لویه امپراطوري یې جوړه کړه. له سکندر وروسته یوناني امپراطوري تجزیه شوه.

د یوناني امپراطورۍ د تجزیې پر مهال د رومي امپراطورۍ غوړېدو او پراختیا ته زمینه برابره شوه چې تفصیل به یې د روم د مدنیت تر سرلیك لاندې ولولو.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د توسیدیدس د نظریاتو په اړه او دویمه ډله دې د هومر په اړه خپل معلومات بیان کړي.

## پوښتنې

۱- توسیدیدس څوك و؟

۲ - میسینیانو څه ډول تمدن درلود؟

۳- د دوریانو په اړه څه معلومات لرئ؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د مقدوني سکندر په اړه یو مطلب ولیکي.

## ایا اورېدلي مودي چې د پخواني روم امپراطورانو ته يې د اروپا واكمنان ويل؟



د لرغوني روم يوه مجسمه

**په تېر درس کې مو ولوستل چې د یوناني امپراطورۍ تر پرزېدلو وروسته د روم امپراطورۍ د پراختيا لپاره زمينه برابره شوه.**

تر میلاده لس پېړۍ وړاندې د **روم** د شا او خوا ځینې مېشت قومونه سره يو شول چې د **لاتينيانو** په نامه يې شهرت وموند. دغو وګړو په وروستيو کې له **اتروسکايانو** سره يوځای شاهي نظام رامنځته کړ چې له میلاده وړاندې تر ۵۰۹ کاله پورې يې دوام وکړ. همدې قومونو تر میلاد ۲۶۵ کاله پخوا په روم کې د جمهوري نظام بنسټ کېښود، چې د واک درې څانګې يې درلودې:

۱- د مشرانو مجلس.

۲- سنتوري یا سل کسیزه شورا.

۳- قبايلي جرګه.

رومیانو تر میلاد ۱٤۹ کاله پخوا يو ځل بیا د **یونان** پر مرکزي سیمو يرغل وکړ او د یونان **مقدوني** ښار يې تر خپلې واکمنۍ لاندې راووست او د خپلې امپراطورۍ د پراختيا لپاره يې له میلاده ۱۳۳ کاله وړاندې د یونان له کرښو تېر شول او اوسنۍ ترکيه يې ونيوله. رومیانو د لوېديځ پر لور هم پرمخ ولاړل. په همغه کال يې **هسپانيا** هم په خپلې واکمنۍ کې شامله کړه. له هغه وروسته رومي امپراطوران د ځواک لوړو پوړیو ته ورسېدل.

نژدې دوه سوه کاله کې د روم د امپراطورۍ په سياسي او ټولنيز وضعيت کې ډېرې پېښې وشوې. بېلا بېل امپراطوران يو په بل پسې واک ته ورسېدل. د تر ټولو مشهورو امپراطورانو نومونه په جدول کې لوستلی شئ:

| د امپراطور نوم | د واکمنۍ کلونه | د هغې دورې ځانګړتیاوې |
| --- | --- | --- |
| سناتور سولا | تر میلاده پخوا له ۷۹ څخه تر ۸۸ پورې | جنګي دیکتاتور او امپراطور و. یوشمېر پاتریسانان یې ووژل. |
| درې کسیزه حکومت (سزار، پمپی او تراسوس) | تر میلاده پخوا له ٦۰ څخه تر ٤۹ پورې | د خبرو اترو په پایله کې دغې درې کسیزې ډلې ګډ حکومت جوړ کړ چې د (تریوم ویرات) په نامه یادېده په دې موده کې سزار د کلوپاترا په نامه یوه مشهوره نجلۍ د مصر پر تخت کښېنوله. |
| دوهم درې کسیزه حکومت (مارک، انتوان او اکتایوس) | تر میلاده پخوا له ۲۷ څخه تر ٤۳ پورې | دغو درې وارو د سزار تر وژلو وروسته د دوو تنو پاتریسانو په وسیله واک تر لاسه کړ. |
| مقدس امپراطور یا اکتایوس | تر میلاده پخوا له ۲۷ تر میلاده پخوا تر ١٤ پورې | د روم ځواکمن امپراتور و. د هغه په زمانه کې د ایټالیا شاهي نوم په امپراطورۍ بدل شو. هغه ته یې د اګوست سزار لقب هم ورکړی و. |
| ژولن امپراطوران (تیبریوس، کالی کولا، کلودیوس او نرن حکومت) | له ١٤ څخه تر ۹٤ زیږدیز پورې | دغه څلور واړه واکمنان د ژول سزار د کورنۍ وو. د روم د امپراطورۍ په پراختیا کې یې لوی لاس درلود. |
| نیکوکاره امپراطوران (نروا، تراژن، هادریان، مارکوس او رولیوس) | د ۹٦ میلادي کال څخه تر ۱۳۸ میلادي کاله پورې | د روم امپراطوران په دې موده کې د خپلې واکمنۍ لوړ پړاو ته رسېدلي وو. |

د روم وروستني امپراطور **مارکوس** او **رلوس** و چې له ۱٦۱ څخه تر ۱۸۰ میلادي کال پورې د روم بشپړ واکمن و.

وروسته د **کامودیوس** په نوم یو تن واک ته ورسېد. کامودیوس فاسد او ناپوه سړی و. د ده د واکمنۍ په دوران کې د روم د امپراطورۍ د راپرزیدلو زمینه برابره شوه.

له ۲۳۵ میلادي کال څخه تر ۲۸٤ میلادي کاله پورې شل تنه رومي شاهان واک ته ورسېدل.

ترڅو د روم امپراطورې په ۳۹۵ میلادي کال کې پر دوو برخو ووېشل شوه چې د ختیځ او لوېدیځ روم په نومونو یادې شوې. چې په لوړو ټولګیو کې به یې ولولئ.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د روم د لومړني جمهوریت په اړه او دویمه ډله دې د روم د وروستني امپراطور په اړه بحث وکړي.

## پوښتنې

١. لومړنی رومي جمهوریت د کومو واکمنو مراجعو په وسیله اداره کېده؟
٢. رومیانو مقدونیه په کوم کال کې ونیوله؟
٣. د روم وروستنی واکمن یا امپراطور څوک و؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپلو معلوماتو پر بنسټ د روم د جمهوري نظام په اړه یو مطلب ولیکي.

# څلورم څپرکی



**د اسلام تاریخ**

- آیا پوهېږئ چې د عربستان اوضاع اسلام له مبارك دین څخه وړاندې څرنگه وه؟
- د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد مصطفي ﷺ له ژوند سره بنه اشنا شئ.
- آیا د اسلام د مبارك دین د لومړیو غزاگانو او فتوحاتو په اړه معلومات لرئ؟
- آیا پوهیږئ چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلافت څرنگه پیل شو؟
- د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په اړه څه معلومات لرئ؟
- آیا د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت د دورې د پېښو په اړه معلومات لرئ؟
- د حضرت علي کرم الله وجهه د خلافت دوران څرنگه تېر شو؟
- آیا د امویانو د خلافت د پیل په اړه معلومات لرئ؟
- آیا پوهیږئ چې د امویانو خلافت څرنگه له منځه ولاړ؟
- آیا پوهیږئ چې له امویانو څخه عباسیانو ته واک څرنگه ولېږدید؟
- د عباسیانو خلافت څرنگه راوپرځېد؟

# د څلورم څپرکي موخې

په دې څپرکي کې زده کوونکي له اسلامه د مخه د عربو په ژوند او حالاتو باندې پوهېږي؛ د اسلام د ستر نبي حضرت محمد مصطفی ﷺ ژوند لیک لولي او زده کوي يې؛ د اسلام د مبارک دین د پیل د کلونو پر مهال له ټولنيزو ستونزو او غزاګانو سره آشنايي پيدا کوي؛ د راشدو خلفاوو له دوران سره آشنا کېږي؛ د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د دور له پېښو خبرېږي؛ د اسلام د دويم خليفه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د زمانې پېښې او جريانات زده کوي؛ د حضرت عثمان رضي الله عنه د مهال له پېښو سره اشنا کېږي؛ د حضرت علی کرم الله وجهه د زمانې له پېښو خبرېږي.
همدا راز، اموي کورنۍ ته د واک د لېږد له څرنګوالي خبرېږي او د هغې دورې د مهمو خلفاوو په اړه معلومات ترلاسه کوي او د امويانو پر ضد د وګړنيزو پاڅونونو او د هغوی له راپرځېدو سره آشنا کېږي. پردې سربېره د عباسيانو د دورې د مشهورو خلفاوو له پرمختيا او ځوړتيا سره بلدېږي.

## آيا پوهيږئ چې د عربستان اوضاع د اسلام له مبارک دين څخه وړاندې څرنګه وه؟



د اسلام له مبارك دين څخه وړاندې د اعرابو د مذهبي دودونو يو انځور

د اسلام د مبارك دين له راڅرګندېدو دمخه د **عربستان** وګړو او د نړۍ د ډېرو هېوادونو وګړو په شرك او خرافاتو عقيده درلوده. تر اسلام وړاندې به په عربستان كې هرې قبيلې ځانته بت جوړاوه او د هغه عبادت به يې كاوه العياذ باالله، هغه به يې خپل خداى ګاڼه. په خپلو عقيدو كې به يې موهوماتو او جادو ته ډېر ارزښت وركاوه. په ټوليز ډول يې د بې باورۍ او بې عدالتۍ په حالت او د جهل او ناپوهۍ په چاپېريال كې ژوند كاوه. پر يو بل يې اعتماد او باور نه درلود. له خپلو مريانو سره يې غير انساني چلند درلود. ښځې يې له هر ډول انساني او بشري حقونو بې برخې كړې وې. ځينو كورنيو به نوې زېږېدلې نجونې ژوندۍ تر خاورو لاندې كولې.

د شتمنو او بډايو كسانو ترمنځ اخلاقي فساد دود و. جواري (قمار) او شراب څښل د اشرافو د زامنو ورځنۍ عادت شوى و. دوى د مال او شتو د تر لاسه كولو لپاره هر ډول غيرانساني او غيراخلاقي عمل ترسره كاوه. قوانين يوازې او يوازې د زورواكو د حقونو د دفاع لپاره كارېدل. زورورو به قوانين رامنځ ته كول او هغه به يې د مظلومو او بېوزلو خلكو پر ضد كارول.

د قبايلو د مشرانو ترمنځ لاسليك شوي تړونونه د هغې زمانې دوديز قوانين و. د قبايلو غړي مصؤون

او خونديي و، او د لاسليك شويو ترونونو پر بنسټ يې خپل حقونه ترلاسه کول. د قبايلو د غړو ترمنځ درنښت او ارزښت هم د ترونونو پر بنسټ و.کومو کسانو به چې د قبيلې غړيتوب نه درلود له ټولو حقونو او امتيازاتو بې برخي وو. د دې ډول خلکو پر مالونو او حقونو باندې تېرى جايز ګڼل کېده.
ددغو ټولو اخلاقي، ټولنيزو انحرافاتو، ناپوهيو، ظلمونو او نابرابريو د له منځه وړلو لپاره د الله ﷻ له لوري د اسلام مبارک دين د **نبي کريم حضرت محمد مصطفى**ﷺ په واسطه د ځمکې د مخ د ټولو انسانانو لپاره نازل شو. حضرت محمدﷺ خلک د لوى څښتن د وحدانيت د منلو په لور راوبلل. شرک او په خپل لاس د جوړو شوو بتانو عبادت يې منع کړ او د مسلمانانو ترمنځ يې ټولنيز باور، عدالت، برابري او وروروِلي رامنځته کړه.
د نجونو ژوندي ښخول او د هغوى پر انساني او ټولنيزو حقونو باندې تېرى يې منع کړ. له مريانو سره کړه وړه ته يې د هغوى په ګټه بدل کړل. په عمومي توګه، ويلى شو چې د اسلام مبارک دين يو الهي بشپړ دين دى چې د لوى څښتن له لوري د ځمکې د مخ د ټولو انسانانو د اصلاح او روښانولو لپاره د حضرت محمد مصطفىﷺ له خوا ابلاغ شوى دى.

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وويشل شي. لومړۍ ډله دې په عربستان کې د جهالت او ناپوهۍ د دوران په اړه بحث وکړي او دويمه ډله دې هغه تغييرات او سمونونه شرح کړي چې د اسلام د مبارک دين له څرګندېدو وروسته را منځته شول.

## پوښتنې

۱- په عربستان کې له اسلام څخه وړاندې هرې قبيلې ځانته ..... جوړاوه او د هغه عبادت به يې کاوه.

۲- د اسلام مبارک دين خلک ......... ته رابلل.

۳- اسلام د الله پاک يو بشپړ ........ دى.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د خپل جومات له ملا امام څخه وپوښتي چې د اسلام مبارک دين تر نازلېدو وروسته د انسانانو په ژوند کې کوم بدلونونه راغلي دي. تر لاسه شوي معلومات دې ټولګيوالو ته ووايي.

# د اسلام د ستر پیغمبر حضرت محمد (ص) له مبارک ژوند سره بنه آشنا شئ



په مدینې منورې کې نبوي جومات

د بشري ټولنې ستر لارښود **حضرت محمد مصطفیٰ** ﷺ د **عبدالله** زوی او د **عبدالمطلب** لمسی و. په **۵۷۱** زکال کې یې نړۍ په خپل راتګ سره منوره کړه. د ده مبارکه مور **بي بي امنه** او رضاعي مور یې **بي بي حلیمه** رضی الله عنها نومېده.

د حضرت نبي کریم ﷺ پلار د ده له زېږېدو څخه دمخه وفات شوی دی. په شپږ کلنۍ کې یې مور وفات شوه او په اته کلنۍ کې یې نیکه هم له لاسه ورکړ. له دې وروسته د ده پالنه د ده د تره ابوطالب په غاړه شوه.

حضرت نبي کریم ﷺ په پنځه ویشت کلنۍ کې له **بي بي خدیجې** رضی الله عنها سره، چې یوه پتمنه او عزتمنه مېرمن وه، واده وکړ. په اسلامي نړۍ کې دا لومړنۍ مېرمن وه چې ایمان یې راووړ او د اسلام په مبارک دین مشرفه شوه. د حضرت رسول اکرم ﷺ د ګابو ټولو اولادونو مور همدا بي بي خدیجه رضی الله عنها وه. یوازې **حضرت ابراهیم** د نبي کریم ﷺ هغه زوی و چې مور یې **بي بي ماریه قبطیه** رضی الله عنها نومېده.

د حضرت محمد مصطفي ﷺ په ژوند کې د ده تر بعثت دمخه ډېرې مهمې پېښې وشوې چې له امله یې د هغه شخصیت د مکې او عربو خلکو په منځ کې غوره او لوړ شو.

د حضرت نبي کریم ﷺ رېښتینولي او امین توب د دوی په شریفانه ژوند کې د دې لامل ي شو چې

حضرت بي بي خدیجه رضي الله عنها یې د خپلو سوداګریزو چارو د سمون لپاره غوره کړي. په مکې کې د کعبې شریفې په دېوال کې د **حجرالاسود** د ډبرې بېرته ایښودل او ځای په ځای کول بله هغه پېښه وه چې حضرت رسول کریم صلی الله علیه وسلم ته یې د یوه ډېر مدبر شخصیت په توګه شهرت ورکړ. د حجرالاسود د ډبرې د بیا ځای په ځای کولو په اړه د عربو دوه قومونه یوې لویې شخړې ته سره نژدې شوي وو. خو حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خپلې ځانګړې پوهې او خاص تدبیر سره دغه لانجه حل کړه. د حجرالاسود ډبره یې په یوه لوی ټادر کې کېښودله او د ښکېلو قومونو مشرانو ته یې وویل چې هغه له څلورو خواوو (پیڅکو) څخه ونیسي او له ځایه یې اوچته کړي بیا په خپله حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم دغه مبارکه ډبره له ټادر څخه راواخیسته او د دېوال په ټاکلي ځای کې یې کېښود په دې توګه د دوو لویو قومونو ترمنځ د لویې لانجې مخه ونیول شوه.

حضرت محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم څلوېښت کلن و چې په نبوت مبعوث شو. دغه ستر امانت د لوی ښښتن له لوري د **حضرت جبرائیل امین** علیه السلام په وسیله دوی ته را ورسول شو.

حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د اسلام مبارک دین ته د بلنې په لومړیو کلونو کې زیاتې ستونزې وګاللې. خو له دې ټولو سره سره یې بې له ځنډه د اسلام مبارک دین په خپرېدو کې پرله پسې زیار وایست. د نارینه وو له ډلې څخه **حضرت ابو بکر صدیق** رضي الله عنه او د ماشومانو له ډلې څخه **حضرت علي کرم الله وجهه** او د مریانو له ډلې څخه زید بن حارث لومړني اشخاص وو چې د اسلام په مبارک دین مشرف شول.

حضرت محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم په ۶۲۱- ۶۲۲ زېږدیز کال کې له مکې معظمې څخه مدینې منورې ته هجرت وکړ چې همدغه هجرت بیا د اسلامي نړۍ د تاریخ پیل شو او د هجرت په لومړي کال مدینې منورې کې الهی قانون نافذ شو.

حضرت محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم په ۶۳ کلنۍ کې هغه مهال چې له **حجة الوداع** څخه راستون شو، له لږې مودې وروسته له دې فاني نړۍ څخه رحلت وکړ.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د شجرې او کورنۍ په اړه او دویمه ډله دې د اسلامی نړۍ د لومړنیو مسلمانانو په اړه بحث وکړي.

## پوښتنې

۱- حضرت جبرائیل علیه السلام د خدای جل جلاله له لوري حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته څه پیغام راووړ؟

۲- حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څو کلن و چې په پیغمبرۍ مبعوث شو؟

۳- د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د شجرې په اړه څه معلومات لرئ؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپلې سیمې له ملا امام څخه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د ژوند او اخلاقي ښېګڼو په اړه معلومات تر لاسه کړي او خپلو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

## آیا د اسلام د مبارک دین د لومړیو غزاګانو او فتوحاتو په اړه معلومات لرئ؟



د لوی څښتن د حکم او د حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ د پرله پسې بلنې له امله د **مکې معظمې** او **مدینې منورې** ډېر وګړي د اسلام په مبارک دین مشرف شول. د اسلام مبارک دین له یوې ورځې څخه بلې ته پیاوړی کېده. مشرکانو هڅه کوله چې د اسلام د دین د پرمختګ مخه ونیسي. ډول ډول خنډونه یې رامنځته کول. له مسلمانانو سره یې اړیکې پرې کړې. د مسلمانانو کورونه یې محاصره کړل او مسلمانان به یې په یوازې او ډله ییزه توګه ځورول. د دغه ډول بندیزونو او ګواښونو سره سره بیا هم خلکو له یوې ورځې څخه بلې ته اسلام ته مخه کوله. مسلمانان دومره زیات شول چې نور یې له ځانه دفاع کولای شوای او هم یې دا توان وموند چې د مشرکینو د تیرې د مخنیوي په منظور د غزاګانو ډګر ته ور ودانګي. ځینې غزاګانې وشوې چې یو څو یې په لنډه توګه یادوو.

### د بدر غزوه

د مسلمانانو او مشرکینو ترمنځ لومړنۍ غزا د **بدر** په نامه یاده شوې ده. دا غزا د هجرت په دویم کال مدینې ته نژدې د بدر په سیمې کې وشوه چې مسلمانان پر مشرکینو بریالي شول. دا د جګړې په ډګر کې د مسلمانانو په ګټه لومړنۍ سوبه او فتح وه. که څه هم په دې جګړې کې د مسلمانانو شمېر ۳۱۳ تنه او د مشرکینو شمېر کابو ۱۰۰۰ تنو ته رسېده، خو د لوی څښتن ﷻ په مرسته مسلمانان بریالي شول.

### د احد غزا

د **احد** غزا د مسلمانانو یوه مشهوره غزا ده. دغه غزا په دریم هجري کال کې شوې، چې له امله یې د

مکې مشرکینو ته ډېره مرگ ژوبله اوښتې وه.

## د خندق غزا

بله غزا چې د حضرت محمد رسول الله ﷺ په ژوند کې پېښه شوې ده د **خندق** په نامه یادېږي. په دې غزا کې مشرکینو په یرغلونه پیل وکړ. خو بریالي نه شول دغه غزا په پنځم هجري کال کې وشوه.

## د موتې غزا

د مسلمانانو او رومیانو ترمنځ یوه بله مهمه غزا د **موتې** غزا وه چې په ا تم هجري کال کې وشوه. په دې غزا کې حضرت **خالد بن ولید** رضي الله عنه ډېر ارزښتمن رول ولوباوه.

## د مکې معظمې فتح

د مسلمانانو یوه ډېره ستره بریا همدا د **مکې و معظمې** فتح وه، چې په اتم هجري کال کې پېښه شوه. له شک پرته مسلمانان پر مشرکانو برلاسي وو. ځکه نو مشرکانو د ډار احساس کاوه. حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ وویل: هرڅوک چې په کور کې وي او ور یې تړلی وي په امان کې دی. هرڅوک چې مسجد الحرام ته پناه یوسي په امان کې به وي او هرچا چې د **ابوسفیان** رضي الله عنه کور ته پناه یوړه په امان کې به پاتې شي. په دې ډول، مسلمانان بې له کوم جنگ څخه د مکې معظمې سیمې ته وردننه شول او لویه بریا یې په نصیب شوه.

## د حُنین غزا

دا غزا د مسلمانانو ډېره ستره غزا ده. په دې غزا کې دولس زره مسلمانانو گډون کړی و. په داسې حال کې چې د مشرکانو شمېره څو چنده ډېره وه. د لوی څښتن جل جلاله د مرستې په برکت مشرکانو له سختې ماتې سره مخامخ او مسلمانان بریالي شول. دا غزا د طایف په شاوخوا سیمه کې پېښه شوه.

په پایله کې مسلمانانو ته د غزاگانو او بریالیتوبونو له امله په ټولنیز او سیاسي ژوند کې مناسب او وړ شرایط را منځته شول. د حضرت محمد مصطفیٰ ﷺ له رحلت څخه د مخه د اسلام د مبارک دین نفوذ د مکې، مدینې او د عربي ټولنې په سیمو او ښارونو کې خپور شو او د **جزیرة العرب** یووالی یې رامنځته کړ. دغو بریالیتوبونو د نړۍ په کچه د یوه پیاوړي او ځواکمن اسلامي حکومت د رامنځته کېدلو بنسټ کېښود، چې په راتلونکو لوستونو کې به یې ولولئ.

### په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د مسلمانانو پر وړاندې د مشرکانو د ناوړه کړو وړو په اړه او دویمه ډله دې د مسلمانانو د غزاگانو په اړه خپل معلومات ووایي.

### پوښتنې

۱- د کفارو او مشرکانو کړه وړه د مسلمانانو په وړاندې څنگه وو؟

۲- د مسلمانانو او مشرکانو ترمنځ لومړنۍ غزا .......... نومېده.

۳- د مشرکانو په وړاندې د مسلمانانو د څو غزاگانو نومونه واخلئ.

### له ټولگي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپلې سیمې د جومات له ملا امام څخه د غزاگانو په اړه پوښتنې وکړي او بیا دې خپل دغه معلومات خپلو ټولگیوالو ته واوروي.

## آیا پوهیږئ چې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلافت څرنګه پیل شو؟




د ثور سمڅه
هغه ځای دی چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه له مشرکانو څخه پناه وروړې وه.

د **حضرت ابوبکر صدیق** رضی الله عنه نوم عبدالله و. حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم هغه ته د **صدیق** لقب غوره کړ، د جاهلت په دورې کې یې نوم **عبدالکعبه** و نوموړی له **عام الفیل** څخه دوه کاله وروسته په **مکه** کې نړۍ ته راغی. د ده شجره په شپږم نیکه کې حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته رسېږي. د حضرت محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم له رحلت څخه وروسته د کډوالو او کوربنو (**مهاجرو او انصارو**) د یوې پراخې او عامې غونډې له لارې سقیفې بني ساعدې په سیمه کې د اسلامي خلافت مقام ته د لومړني خلیفه په توګه غوره شو. هغه د **راشدو خلفاوو** له ډلې څخه لومړنی خلیفه و چې له یوولسم څخه تر دیارلسم هجري کاله پورې د مسلمانانو په چوپړ کې و. حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په خپلې لومړنۍ خطبه کې چې مسلمانانو ته یې وکړه داسې وویل: ((اې خلکو! تاسو چې زه د خلیفه په توګه غوره کړم. زه له تاسو څخه څه ځانګړې لوړتیا نه لرم. که ما ښه کارونه کول له ما سره ملتیا وکړئ او که بد کارونه مې کول منع مې کړئ. ستاسو ځواکمن زما په وړاندې ضعیف او ستاسو ضعیف ماته غښتلی دی تر هغه چې د ضعیف حق له ځواکمن څخه واخلم او هغه ته یې ورکړم. په هر قوم کې چې ناوړه کارونه دود شي په بلاګانو اخته کېږي.))

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خپل خلافت په دوه کلنې دورې کې د ځینو قومونو د **ارتداد** مخه ونیوله. په دې مهال کې ځینو مرتدانو د نبوت دعوا وکړه. له دې ډلې کولی شو د **مسیلمه کذاب** نوم واخلو چې د

حضرت ابوبکر صدیقؓ له خوا ووژل شو. او دده منونکي بېرته د اسلام مبارک دین ته راوګرځېدل.

حضرت ابوبکر صدیقؓ مرتدانو ته په دې ټکو کې پیغام واستاوه:((د ښېښونکي او مهربان څښتن په نامه! ((د لوی څښتن او د هغه د ستر استازي د خلیفه له لوري د ابوبکر صدیق پیغام هر چا ته خاص دی، که عام مسلمین دي، که مرتدان. درود دې وي پر هغه چا چې د هدایت په لاره روان دی او له هدایته وروسته یې تیارې او ړندو لارو ته مخه نه ده کړې. زه واحد څښتن تعالیﷻ ستایم. او وایم چې له هغه څخه پرته بل خدای نشته او حضرت محمدﷺ د هغه بنده او استازی دی. په هغه څه چې راوړي یې دي او نازل شویدي ایمان لرم او هرڅوک چې یې له ډډه کوي، هغه کافر بولم او په وړاندې یې جهاد کوم.)) او د دې پیغام په یوې برخې کې راغلي دي چې ((امابعد لوی څښتن جل جلاله په حقه سره حضرت محمدﷺ د خلکو د اصلاح لپاره واستاوه. چې ډاروونکی او زیری ورکوونکی وی. د الله پاک په اراده او غوښتنې سره خلک د هغه لوري ته راوبولي او ټول انسانان له الله جل جلاله څخه وویروي لوی څښتنﷻ د هغه چا لاره سمه کړه چې د حضرت رسول کریمﷺ بلنه یې ومنله. او حضرت نبي کریمﷺ هغه وګړي چې له ده څخه یې مخونه اړولي و. بیرته اسلام ته راواړول.

وروسته حضرت رسول اکرم په داسې حال کې چې د رب العزت امر یې پر ځای کړی و او خپل امت ته یې لارښوونې تر سره کړې او د لوی څښتن له لوري یې خپله دنده هغسې چې ښایي ترسره کړه، له دې فاني نړۍ څخه یې رحلت وکړ ...

حضرت ابوبکر صدیقؓ هغه وګړي هم اصلاح کړل چې د زکات د فریضې له اداکولو څخه یې ډډه کوله. د مسلمانانو د حاکمیت سیمه دحضرت ابوبکر صدیقؓ د خلافت په دوران کې شام (اوسنی سوریې) او عراق ته ورسېده د **بین النهرین** د نیولو لپاره یې د **حضرت خالد بن ولید**ؓ په مشرۍ یو لښکر واستاوه او هغه سیمې یې هم د اسلامي حاکمیت په ولکې کې راوستې. چې د مسلمانانو د حاکمیت د سیمو په پراخولو کې حضرت خالد بن ولیدؓ ستره ونډه درلوده.

د حضرت ابوبکر صدیقؓ د خلافت دوره دوه کاله او څو میاشتې وه او په دیارلسم هجري کال کې وفات شو.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت ابوبکر صدیقؓ د خلافت د پیل په اړه او دویمه ډله دې د حضرت ابوبکر صدیقؓ د لومړنۍ وینا په اړه خپل معلومات ورکړي.

## پوښتنې

۱- د حضرت ابوبکر صدیقؓ د خلافت د دورې په اړه څه معلومات لرئ؟

۲- د حضرت ابوبکر صدیقؓ د لومړنۍ وینا په اړه څه پوهېږئ.

۳- د ابوبکر صدیقؓ د خلافت په دوران کې کومې سیمې د مسلمانانو تر ولکې لاندې راغلې؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له خپل ملا امام څخه د اسلام د لومړني خلیفه حضرت ابوبکر صدیقؓ د ژوندانه په اړه نور معلومات ترلاسه کړي او هغه دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

## د حضرت عمرفاروق (رض) د خلافت په اړه څه معلومات لرئ؟




بصره، د هغو ښارونو څخه ده چې د حضرت عمر فاروق(رض) د خلافت په مهال ودانه شوه.

د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه تر وفات وروسته، خلافت **حضرت عمر فاروق** رضي الله عنه ته ورسېد نوموړی د مدینې منورې د ټولو مېشتو وګړو (انصارو او مهاجرینو) له خوا په یوه خوله او اتفاق د مسلمانانو په خلافت وټاکل شو. حضرت عمر فاروق بن خطاب رضي الله عنه د فجارو له جګړې څخه څلور کاله د مخه په مکې مکرمې کې نړۍ ته راغی. د ده شجره **کعب بن لوی** قریشي او بیا د **بني عدي** طایفې ته رسېږي. په ماشومتوب کې یې د خپل پلار پسونه پوول. د جاهلیت په دوره کې یې د قریشو د استازي په توګه د خپل منځي نښتو د له منځه وړلو لپاره د یوه مصلح او سفیر په توګه دنده ترسره کوله. په فصاحت او بلاغت کې یې ثاني نه درلوده. له همدې امله یې په عربو کې ډېر نېک او ښه شهرت درلود. د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له بعثت څخه شپږ کاله وروسته د اسلام په مبارک دین مُشرف شو. د حضرت نبي کریم صلی الله علیه وسلم له ډېرو نژدې یارانو څخه و. کله چې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ناروغي شدیده شوه. نو مسلمانان د یوه خلیفه په فکر کې شو. په دې اړه یې له پوهو خلکو او له خپلو دوستانو څخه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په اړه پوښتنې کولې. ټولو له څه هیلې او غرضه پرته د زړه له کومې په ربښتیني توګه حضرت فاروق رضي الله عنه تاییداوه. یوه ورځ یې په همدې اړه له حضرت عثمان رضي الله عنه څخه وپوښتل. ده په ځواب کې وویل: تاسو له موږ ټولو څخه د حضرت عمر رضي الله عنه په اړه ډېر معلومات لرئ او ښه یې پېژنئ، سختګیر دی. خو باطن یې له ځرګندې بڼې ډېر ښه دی. په موږ کې له عمر رضي الله عنه څخه بل ډېر ښه څوک نشته.
د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه له وصیت سره سم، د خلافت چارې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته وسپارل

شوې. په وصیت پاڼه کې راغلي وو:

د بښونکي او مهربان خدایﷻ په نامه:

ما عمر بن خطابؓ پر تاسو امیر وټاکه. که چېرې یې نیکي وکړه او د باور او عدالت پر لارې ولاړ، دا هغه څه دي چې زه د هغه په اړه پوهېږم. او هغه فکر دی چې د هغه په اړه یې لرم. او که چیرې یې ظلم وکړ، حق ته یې بدلون ورکړ، زه په غیب نه پوهېږم، زما نیت ښه دی او د هر چا چلند په هغه پورې اړه لري او هغوی چې تېری او ناروا کوي، پوه به شي چې پایله یې څه ده.

## د حضرت عمر فاروقؓ د خلافت په مهال سوبې (فتوحات)

د حضرت ابوبکر صدیقؓ له وفات څخه وروسته حضرت عمر فاروقؓ د اسلام د دویم خلیفه په توګه د چارو واګې په لاس کې واخیستې. د مسلمانانو فاتح لښکر د حضرت ابوبکر صدیقؓ په زمانه کې تر **عراق** او د **ساسانیانو** د دولت تر پولو پورې ورسېد. د حضرت عمر فاروقؓ د خلافت په دوران کې د ایران وضع مغشوشه او متزلزله شوې وه تر هغه وروسته چې رومیانو د برموک په جګړې کې ماتې وخوړه، د مسلمانانو ځواکونه د ایران پر لوري وخوځېدل. د ایران د جګړې لپاره د مسلمانانو د ځواکونو مشر **حضرت سعد بن ابي وقاص**ؓ وټاکل شو. هغه په **قادسیې** کې له ایراني پوځونو سره مخامخ شو او هغوی ته یې سخته ماتې ورکړه. د قادسیې او جلولا له سوبو څخه وروسته حضرت سعد بن ابي وقاص د کوفې د ښار د جوړېدو بنسټ کېښود.

له یوې مودې وروسته د **مداین** ښار چې **درېیم یزدګرد** یې دفاع کوله، د مسلمانانو په لاس فتح شو. ساساني دریم یزدګر تېښتې ته مخه کړه. دغو جګړو څلور کاله دوام وموند چې په پای کې د **نهاوند** ښار د مسلمانانو لاس ته ورغی. مسلمانانو په دغې سوبې باندې **فتح الفتوح** نوم کېښود. له دې جګړې وروسته یزدګرد **خراسان** ته وتښتېد او په یو دیرشم هجري کال کې د یوه خراساني ژرنده ګر لخوا ووژل شو.

لنډه دا چې د حضرت عمر فاروقؓ د خلافت په لس نیمو کلو کې ډېرې ځمکې د مسلمانانو له خوا فتح شوې، چې پراخوالی یې د **مصر** له لوېدیځې برخې څخه نیولې بیا د **افغانستان** تر ختیځو برخو پورې رسېده. د دې دورې یوه بله مهمه چار دا وه چې د مسلمانانو تاریخ د حضرت نبي کریمﷺ له هغه هجرته پیل شو چې له مکې څخه یې د لومړي ځل لپاره په دایمي توګه هجرت وکړ. حضرت عمر فاروقؓ د هجرت په ۲۳ کال کې یوه ایراني مجوسي مریي له خوا چې **ابو لؤلؤ** نومېده، د لمانځه د اداکولو په حال کې په شهادت ورسېد. د ده د خلافت په دوره کې مسلمه امت له فوق العاده سوکالۍ او عدالت څخه برخمن و.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت عمر فاروقؓ د ژوندانه په اړه او دویمه ډله دې د هغې دورې د فتوحاتو په اړه معلومات ورکړي.

### پوښتنې

۱- حضرت عثمانؓ د حضرت عمر فاروقؓ په اړه حضرت ابوبکر صدیقؓ ته څه وویل؟

۲- حضرت ابوبکر صدیقؓ په خپل وروستني وصیت لیک کې څه لیکلي وو؟

۳- د فتح الفتوح په اړه څه معلومات لرئ؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د حضرت عمر فاروقؓ د اخلاقو او فضایلو په اړه له خپلو ملا امامانو څخه پوښتنې وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې ووایي.

## آیا د حضرت عثمان (رض) د خلافت د دورې د پېښو په اړه معلومات لرئ؟



د قرآن عظیم الشان یوه پاڼه

**حضرت عثمان**ﷺ د **عفان** زوی، او له **عام الفیل** نه پنځه کاله د مخه په **مکې مکرمې** کې زېږېدلی دی. د سخاوت ساری یې نه و او د یوه رحیم او مهربان شخصیت څښتن و. د حضرت ابوبکر صدیقﷺ په واسطه د اسلام د مبارک دین منلو ته وبلل شو، او مسلمان شو.

هغه شتمن و او خپله شتمني یې د اسلام په لاره کې وکاروله. د **بدر** له غزا څخه پرته په ټولو غزاګانو کې یې برخه واخیسته.

د حضرت عمر فاروقﷺ له شهادته څخه وروسته د مسلمانانو له مشورې سره سم په **۲۳ هجري** کال کې د اسلام د درېیم خلیفه په توګه وټاکل شو. د حضرت عثمانﷺ د خلافت په دورې کې د **ترکیې** زیاتې برخې او د **افریقې** ځینې برخې په اسلامي واکمنۍ کې شاملې شوې. دغه راز، په دې دوره کې د **همدان**، **سکندریې** او **آذربایجان** بغاوتونه غلي کړی شول. د همدې خلیفه په وخت کې د **حضرت معاویه**ﷺ په مشرۍ د سمندري ځواک په نامه د سرتېرو یو ځانګړی ځواک رامنځته شو.

حضرت عثمانﷺ په خپل یوه لیک کې د وسله والو پوځونو مشرانو ته د عدالت او له ولس سره د کړو وړو په اړه داسې ولیکل: ((لوی څښتنﷻ خلک په حق سره پیدا کړي او له حقه پرته نور څه نه مني. حق واخلئ او حق ورکړئ. امانت مه خیانتوئ. د امانت بند مه شلوئ. که نه، د هغو کسانو

په ګناه کې به شریک شئ چې له تاسو وروسته په د همدې لارې ځي. په عهد او تړون وفا وکړئ. په یتیم او په هغه چا چې له تاسو سره په تړون کې شریک او ګډ دي، ظلم او ناروا مه کوئ. هر څوک چې پر یتیم او شریک ظلم وکړي لوی څښتن ﷻ د هغه دښمن دی.))

## د قرآن کریم راجمع کول

د حضرت عثمانؓ د خلافت د مهال له ډېرو سترکارونو څخه یو هم د قرآن عظیم الشان را ټولول وه. قرآن شریف د ۲۳ کلو په اوږدو کې د وخت د غوښتنې سره سم پر حضرت محمد ﷺ نازل شو. د قرآن کریم مبارک ایتونه به اصحابو کرامو خپلو حافظو ته سپارل او یا به یې د ونو په پوستکو لیکل. د مسلمانانو او کفارو ترمنځ له څو غزاګانو او جګړو وروسته یوشمېر قاریان په شهادت ورسېدل. څکه نو دا اړتیا احساس شوه چې قرآن کریم راټول او تدوین شي.

د حضرت ابوبکر صدیقؓ د خلافت په دورې کې قرآن کریم د مصحف په توګه ټول کړی شوی و، خو د حضرت عثمانؓ د خلافت په دوره کې قرآن شریف په بشپړ ډول د راویانو په واسطه د **حضرت زید بن ثابت**ؓ تر نظر لاندې چې د وحې د کاتبانو له ډلې و، په پوره غور وحیې راټولې او ولیکل شو. نورو نسخو سره له مقابلې څخه وروسته حضرت عثمانؓ حکم وکړ چې ټولې متفرقې پخوانۍ نسخې دې له منځه یوړل شي او له هغو څخه څو کاپیګانې د قرانکریم ولیکل شي.

حضرت عثمانؓ په اویا کلنۍ کې خلیفه وټاکل شو. او د خلکو د ارامۍ او سوکالۍ لپاره یې ډېرې هڅې وکړې. حضرت عثمانؓ دولس کاله خلافت وکړ او په ۳۶ هجري کال په داسې حال کې چې د پاک قرآن په تلاوت لګیا و. د یوه تن باغي له خوا په شهادت ورسېد.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي لومړۍ ډله دې د حضرت عثمان (رض) د شخصیت په اړه بحث وکړي او دویمه ډله دې د هغه د دورې د سترو کارونو په اړه خبرې وکړې.

### پوښتنې

۱- د حضرت عثمانؓ د شخصیت په اړه څه معلومات لرئ؟

۲- پاک قرآن د اسلام د کوم خلیفه په وخت کې راټول شو؟

۳- حضرت عثمانؓ څو کاله خلافت وکړ؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له ملا امامانو څخه د اسلام د درېم خلیفه په اړه معلومات راټول او هغه دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

# د حضرت علي كرم الله وجهه د خلافت دوران څرنگه تېر شو؟



دکوفې جومات
د حضرت علي كرم الله وجهه د خلافت مركز

**حضرت على كرم الله وجهه** د **ابي طالب** زوى، د **عبدالمطلب** لمسى، د **بني هاشم** د قبيلې او د **قريشو** له قام څخه و. سربېره پر دې چې د حضرت محمد مصطفى ﷺ د تره زوى و، د هغه زوم هم و. له هجرته يوويشت كاله د مخه په مكې مكرمې كې وزېږېد. د قحطۍ په كال كې حضرت علي كرم الله وجهه د يوې مودې لپاره له حضرت نبي كريم ﷺ سره و. وروسته له هغې چې حضرت رسول اكرم ﷺ په نبوت مبعوث شو، حضرت علي كرم الله وجهه لس كلن و چې د اسلام په مبارك دين مشرف شو. حضرت على كرم الله وجهه په خلكو كې په عدل، باور، انصاف او ذكاوت مشهور و. هغه وخت چې مشركانو د حضرت محمد مصطفي ﷺ پر كور يرغل وكړ، هغه مهال حضرت علي كرم الله وجهه د حضرت نبي كريم ﷺ د خوب په بستر كې ويده شو او په دې ترتيب مشركان خپلې هيلې ته ونه رسېدل. د حضرت عثمان رضي الله عنه له شهادت څخه وروسته په **۳۶** هجري كال كې د مسلمانانو د يوې غونډې د پرېكړې پر بنسټ د اسلامي نړۍ د خليفه په توگه غوره او وټاكل شو. دى د ځينو مسلمانو مشرانو له مخالفتونو سره مخامخ شو. د همدغو مخالفتونو په پايله كې د مسلمانانو ترمنځ دوه جنگونه پېښ شول، چې يو يې د **جمل** او بل يې د **صفين** په نامه ياد شوي دي.

## د جمل جگړه

دغه جگړه په **بصرې** كې پېښه شوه. په دې جگړه كې د حضرت محمد مصطفي ﷺ مېرمنې **بي بي عايشې** رضي الله عنها هم ونډه اخيستې وه. د دې لپاره چې نوموړې پر اوښ سپره وه، نو ځكه يې دغه جگړه

د جمل یا اوښ په نامه نومولې ده.

## د صفین جګړه

دغه جګړه د **صفین** په سیمه کې د حضرت علي کرم الله وجهه او حضرت **معاویه** رضي الله عنه ترمنځ په اووه دېرشم هجري کال کې پېښه شوه. اووه ورځې یې دوام وکړ. له هغه وروسته جګړه سړه شوه او دوه تنه د خبرو اترو لپاره وټاکل شول. حضرت علي کرم الله وجهه حضرت **ابوموسي اشعري** (رض) د خپل استازي په توګه وټاکه او د حضرت معاویه رضي الله عنه له خوا **عمرو بن العاص** رضي الله عنه غوره شو. د خبرو اترو په پایله کې دواړه لوري په دې سلا شول چې حضرت علي کرم الله وجهه او حضرت معاویه (رض) دواړه له واکه لرې شي او په عوض یې یو درېیم تن د مسلمانانو له خوا د خلافت لپاره وټاکل شي. حضرت عمرو رضي الله عنه حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه ته وویل چې ولاړ شه او دغه پرېکړه اعلان کړه. حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه راغی او پرېکړه یې داسې اعلان کړه:

موږ پرېکړه وکړه چې حضرت علي کرم الله وجهه او حضرت معاویه رضي الله عنه دواړه له واکه لرې کړو. تاسې مسلمانان له خپله منځه یو بل څوک د خلافت لپاره غوره کړئ. له حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه وروسته عمرو بن العاص رضي الله عنه پر خپل ځای ودرېد او ویې ویل:

اې خلکو تاسو واورېدل. چې حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه خپل یار لرې کړ. زه هم د هغه یار لرې کوم او د هغه پر ځای معاویه خلافت ته منصوبوم. په دې توګه، د حضرت معاویه رضي الله عنه پلویانو خبرې اترې د ځان په ګټه اعلان کړې.

## د خوارجو څرګندېدل

دا یوه بله پېښه ده چې د صفین له جګړې څخه وروسته واقع شوه. **خوارج** سیاسي عقیدتي ډله وه چې د اسلام په سیاسي او ټولنیز تاریخ کې یې ونډه درلوده. دوی د حضرت علي کرم الله وجهه له پلویانو څخه وو او پر هغه ترون یې نیوکه (اعتراض) درلوده چې حضرت علي کرم الله وجهه له حضرت معاویه رضي الله عنه سره د خبرو اترو لپاره کړی و. دوی له دې نیوکې څخه وروسته د حضرت علي کرم الله وجهه د یارانو له ډلې څخه ووتل او په همدې بنسټ په خوارج معروف او مشهور شول.

حضرت علي کرم الله وجهه په عمومي توګه پنځه کاله د مسلمانانو خلافت وکړ. د هجرت په څلوېښتم کال د خوارجو د طایفې د یوه تن له لوري، چې **عبدالرحمن بن ملجم** نومېده، ټپي او دوه ورځې وروسته د همغو ټپونو له امله په شهادت ورسېد او په دې ډول د راشدینو خلفاوو دور هم پای ته ورسېد.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت علي کرم الله وجهه د شخصیت په اړه او دویمه ډله دې د صفین د جګړې په اړه معلومات له خپلو ټولګیوالو سره شریک کړي.

### پوښتنې

- د حضرت علي کرم الله وجهه د کورنۍ او په خپله د ده د شخصیت په اړه څه معلومات لرئ؟ بیان یې کړئ.
- د جمل د جګړې په اړه څه معلومات لرئ؟
- خوارج څوک وو؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې هر یو له خپل ملا امام څخه د حضرت علي کرم الله وجهه د شخصیت په اړه معلومات ترلاسه کړي او بیا دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

## آیا د امویانو د خلافت د پیل په اړه معلومات لرئ؟



د امیر معاویه د دورې مسکوکات

د حضرت علي کرم الله وجهه له شهادت څخه وروسته حضرت معاویه رضي الله عنه په ٤١ هجري کال خلافت ته ورسید.

حضرت **معاویه** رضي الله عنه د **ابو سفیان** رضي الله عنه زوی او د **حرب** لمسی و. له هجرته پنځلس کاله د مخه په مکې مکرمې کې وزیږید. د ده پلار ابوسفیان، د مخه دې تر چې مسلمان شي، د حضرت محمد ﷺ د ډېرو کلکو مخالفانو له ډلې شمېرل کیده. د مکې له فتحې څخه وروسته د خپلې کورنۍ سره یو ځای د اسلام په سپیڅلی دین مشرف شول.

حضرت معاویه درویشت کلن و چې حضرت محمد ﷺ هغه د خپل کاتب په توګه وټاکه. د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې د حضرت معاویه رضي الله عنه ورور، یزید بن ابو سفیان، د شام سرلښکر و. له هغه سره په شام کې ډېر بني امیه استوګن شول. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په دور کې د شام اداره معاویه بن ابو سفیان رضي الله عنه ته سپارله شوې وه. د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې یې هم د والي په توګه خپلې دندې ته دوام ورکړ.

حضرت معاویه رضي الله عنه د امویانو د خلافت بنسټ کېښود. شل کاله یې خلافت وکړ او په شپېتم هجري کـال کې مړ شو. د معاویه له مړینې څخه وروسته لویه امپراطوري په میراث پاتې شوه، چې ختیځې پولې یې له **هندوچین** څخه پېلېدې او په لوېدیځ کې تر **فرانسې** او **هسپانیې** پورې رسېدې. له ده څخه وروسته د ده زوی **یزید** د چارو واګې په لاس کې ونیولې. او د هغه د واکمنۍ د دوران په یوشپېتم هجري کال کې د کربلا غمیزه پېښه شوه. په دې جنګ کې د حضرت محمد مصطفي صلی الله علیه وسلم لمسی **حضرت حسین** رضي الله عنه او د هغه یاران په شهادت ورسېدل. له یزید څخه وروسته د دې کورنۍ یوشمېر کسانو د چارو واګې په لاس کې درلودې. دغه کورنۍ تر یو سلو دوه دېرشم هجري کاله پورې د اسلامي خلافت پر سیمو حکومت وکړ.

مروان د دې لړۍ وروستنی حکمران و. چې له ۱۲۷ څخه تر ۱۳۲ هجري کاله پورې یې پر اسلامي قلمرو حکومت وکړ. په پای کې، ابومسلم خراساني په یوه برخلیک جوړوونکې پاڅون سره د امویانو لړۍ ته د پای ټکی کېښود، چې په راتلونکي لوست کې به یې ولولو.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکې دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت معاویه رضي الله عنه د شخصیت په اړه او دویمه ډله دې په دې کورنۍ پورې د اړوند مهمو پېښو په اړه خبرې وکړي.

### پوښتنې

۱- د امیر معاویه د شخصیت په اړه پوهېږئ؟
۲- د کربلا خواشینوونکې غمیزه څه مهال پېښه شوه؟
۳- د امویانو پر ضد د پاڅون په اړه څه معلومات لرئ؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکې دې د کربلا د پېښې په اړه د خپلو جوماتونو له امامانو څخه پوښتنه وکړي او تر لاسه کړې معلومات دې بیا له خپلو ټولګیوالو سره شریک کړي.

## آيا پوهېږئ چې داموياتو خلافت څرنګه له منځه ولاړ؟



اموي جومات په دمشق کې

یوشمېر اموي خلفاوو الهي احکامو ته پاملرنه درلوده چې له دې ډلې څخه کولی شو حضرت عمر بن عبدالعزیز (رض) ته اشاره وکړو. خو یوشمېر نورو یې رعایاوو ته پاملرنه نه درلوده نو په دې توګه د امویانو پر ضد پاڅونونه پیل شول.

د امویانو پر ضد دغه خوځښتونه او پاڅونونه هغه مهال خپلې لوړې پوړۍ ته ورسېدل چې **ابومسلم خراساني** د عباسیانو په مرسته د پاڅون زمینه برابره کړه. ابومسلم له هرڅه مخکې د عباسیانو پاملرنه ځان ته راواړوله. او بیا یې د اسلامي خلافت پر ضد په ختیځ، په تېره بیا په **خراسان** کې، پاڅون وکړ او تر بغداد پورې یې د امویانو ټولو پلویانو ته ماتې ورکړه. د امویانو یوشمېر پلویان بې له مقاومت څخه پاڅون کوونکو ته تسلیم شول.

د **هرات**، **فوشنګ**، **بلخ**، **تالقانو** او نورو سیمو خلک د ابومسلم په امر تر دمشق پورې د پرله پسې برید په حال کې ورسېدل. هلته یې د لوړو دېوالونو او پیاوړو برجونو پر سر تور رنګي بیرغونه ورپول. په دې حالت کې عباسیانو د ابومسلم ملاتړ درلود. په دې توګه **ابوالعباس** په ۱۳۲ هجري کال د خلافت چارې په خپل لاس کې ونیولې.

کله چې خلافت ابوالعباس سفاح ته ورسېد، خپل تره **عبدالله بن علي** ته يې دنده وسپارله چې د اموي کورنۍ وروستنی خليفه مروان تعقيب کړي. عبدالله هغه تر موصل پورې وڅاره او هلته هم چې کوم جنګ پېښ شو، **مروان** ماته وخوړه او **حران** ته وتښتېد. بيا **دمشق** او **فلسطين** ته وتښتېد. ابوالعباس خپل تره ته لارښوونه وکړه چې د مروان د تعقيب چارې **صالح** ته وسپاري. صالح، مروان د **مصر** د **بومير** نومي کلي پورې وڅاره. هلته يې ونيو او ويې واژه. په دې توګه، عباسي خلافت پيل شو چې په راتلونکو لوستونو کې به يې ولولو.

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د امويانو د نيمګړتياوو په اړه خبرې وکړي او دويمه ډله دې د خراساني ابومسلم د پاڅون په اړه لازم معلومات ور کړي.

### پوښتنې

۱- خراساني ابومسلم څوک و؟
۲- د امويانو په ضد پاڅونونه له کومه ځايه پيل شول؟
۳- اموي وروستنی حاکم څوک و؟

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د ابومسلم په اړه پوښتنه وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې له نورو سره شريک کړي.

## آیا پوهیږئ چې له امویانو څخه عباسیانو ته واک څرنګه ولیږدید؟



د سامرا تاریخي ودانۍ په عراق کې، د عباسیانو د دورې یوه نامتو آبده

**ابومسلم خراساني** سربېره پر دې چې د یوشمېر عجمو له مرستې او ملاتړ څخه برخمن و، یو مُدبر او باخبره سړی هم و سره له دې چې د **تالقانو**، **بلخ** او **هرات** خلک یې په مرو کې سره راټول کړل. د دې ترڅنګ یې هڅه وکړه چې د عربو په تېره د عباسیانو، مرسته هم ترلاسه کړي. له همدې امله یې د عباسیانو له مشرانو سره، چې هغوی هم د امویانو پر ضد په تبلیغاتو بوخت وو، اړیکې ټینګې کړې.
عباسیانو چې په پټه د خلکو بلنه تنظیموله، هڅه یې کوله چې نظامي ځواک هم ولري، چې د امویانو واک پای ته ورسوي. هماغه وو چې د عباسیانو پاملرنه **ابومسلم** ته واوښته، د عباسیانو سره د اړیکو او ژمنو له امله د ابومسلم لښکرو په **دمشق** برید وکړ. د امویانو د وروستني خلیفه **مروان** ځواکونه یې د واک له ګدۍ راوپرځول او د چارو واګې یې د **آل عباس** کورنۍ ته وسپارلې.
عباسي دولت پنځه پېړۍ په اسلامي سیمو حکومت وکړ. د دې کورنۍ لومړنی خلیفه ابوالعباس (سفاح) و چې په ۱۳۲ هجري کال کې یې د چارو واګې په لاس کې ونیولې. نوموړي تر ۱۳۶ هجري کاله پورې پر اسلامي امپراطورۍ واکمني وکړه.
ابوالعباس د جُمعې په ورځ پر منبر باندې خپله لومړنۍ وینا خلکو ته واوروله. په دې توګه له ده څخه خلک خوښ شول او ده ته یې وویل چې د حضرت رسول اکرم ﷺ مبارک سنت دې بیا ژوندي کړل.

ده د دې وينا په ترڅ کې د حضرت نبي کریم ﷺ له فضایلو څخه خبرې وکړې او د امویانو له ظلمونو او بدیو څخه یې یادونه وکړه، چې له ډېرو وګړو، په تېره تېره د نبوت له درنې او پتمنې کورنۍ، سره یې کړې وو. دا یې هم زیاته کړه چې امویانو په زور باندې اسلامي خلافت غصب کړی و.

د عباسیانو واکمنې تر ۶۵۶ هجری کاله پورې وغځېده. د پنځو پېړیو په اوږدو کې د دې کورنۍ څو تنه د واک پر ګدۍ کېناستل. په دې دورې کې ډېرې پېښې رامنځ ته شوې یوه یې د ابومسلم وژنه وه چې د **منصور** خلیفه د حکومت په دورې کې وشوه.

له منصور څخه وروسته کابو ۳۶ تنه یو په بل پسې خلافت ته ورسېدل، چې د یوشمېر مشهورو کسانو نومونه یې په جدول کې لوستلی شئ:

د دې کورنۍ وروستنی خلیفه **ابو احمد المستعصم بالله** و چې د چنګیزیانو د یرغلونو له امله د واک له ګدۍ څخه راوپرځېد.

د عباسي خلیفه ګانو نومونه او د هغوی د واکمنۍ مهال

| د خلیفه نوم | زمانه او یا د واکمنۍ پېر (دوره) |
|---|---|
| ابو العباس | ۱۳۲ هجری |
| ابو جعفر عبدالله منصور | ۱۳۶ هجری |
| ابو عبدالله المهدی | ۱۵۸ هجری |
| ابو جعفر هارون الرشید | ۱۷۵ هجری |
| ابو موسی محمد الا مین | ۱۹۳ هجری |
| ابو جعفر عبدالله مامون | ۱۹۸ هجری |
| ابو اسحاق محمد معتصم بالله | ۲۱۸ هجری |
| ابو جعفر هارون الواثق بالله | ۲۲۷ هجری |
| ابوالفضل جعفر المتوکل علی الله | ۲۳۲ هجری |

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د ابومسلم خراساني په اړه او دویمه ډله دې د ابومسلم د وژل کېدو په اړه خپل معلومات له نورو سره شریک کړي.

## پوښتنې

۱- د خراساني ابومسلم د کارونو په اړه څه معلومات لرئ؟
۲- ابوالعباس (سفاح) څوک و؟
۳- خراساني ابومسلم څرنګه ووژل شو؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپلې سیمې له پوهانو او مشرانو څخه له امویانو څخه عباسیانو ته د واک د لېږد په اړه معلومات ترلاسه کړي او بیا دې خپلو ټولګیوالو ته وو ایي.

## د عباسيانو خلافت څرنګه راوپرځيد؟



د عباسيانو د دورې يوه سکه

له هغه وروسته چې **ابومسلم** ووژل شو يو ډېر شمېر سيمه ييز ځواکونه په تېره د اسلامي امپراطورۍ د ختيځو برخو واکمنان پر **عباسيانو** بې باوره شول. په **هرات**، **سيستان**، **بلخ** او نورو ځايونو کې يوشمېر محلي حاکمانو مخالفتونه وکړه دغه مخالفتونه هغه مهال خپلې لوړې پوړۍ ته ورسېدل چې د **هارون الرشيد** د زامنو **مامون** او **امين** ترمنځ د مخالفتونو له امله لويه ستونزه جوړه شوه. د هرات خلکک او **فوشنجي طاهر** د مامون په پلوی راپاڅېدل. هغوی غوښتل له يوې خوا د ابومسلم کسات واخلي او له بلې خوا د بغداد په اداري او اسلامي خلافت کې د غير عربو ونډه او ارزښت زيات کړي.

د عباسي خلفاوو په وروستنيو مهالونو کې داسې کسان واک ته ورسېدل چې له مزو چړچو يې نور کار نه درلود. د دې کورنۍ د راپرځيدو په اړه کولی شو يو لړ زيات لاملونه په ګوته کړو **د بېلګې په توګه**

- **په خلکو باندې ظلم او د وعدو نه پر ځای کول**: عباسيانو له خپلې کورنۍ څخه پرته له

خپلو نورو پلویانو سره وفا نه کوله چې یوه نمونه یې له ابومسلم سره ناروا چلند و.

- **د عباسیانو پر ضد ځینې پاڅونونه**: د عباسي خلافت په بېلابېلو برخوکې د خپلواکۍ لپاره د سیمه ییزو واکمنانو پاڅونونو د عباسیانو دولت ضعیفه کړ.

- **د عباسي خلیفه ګانو بې کفایتي**: د عباسي کورنۍ په وروستیو کلونوکې داسې کسان واک ته ورسیدل چې د خلکو له ځورونې، مزو چړچو او اخلاقي فسادونو څخه یې نور څه کار نه و.

- **د پیاوړې مرکزیت نشتوالی**: عباسي خلیفه ګانو د خلافت د دوام لپاره نه څه پوهه او نه څه جرأت درلود. هر سیمه ییز امیر کولی شول چې خلیفه وویروي او په خپله ګټه یې وکاروي.

په دې توګه د اسلامي امپراطورۍ د وېش او ټوټه کېدو غوښتنې زیاتې شوې. خو هغه څه چې په پرېکنده توګه د عباسیانو د دولت د راپرځېدلو لامل شو، هغه بغداد ته د هلاکو تر اداري لاندې د مغولي لښکرو رسېدل وو، چې په پایله کې یې عباسي خلافت ته تر پنځو پېړیو واکمنۍ وروسته د پای ټکی کېښود.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د عباسیانو د وروستیو کلونو په اړه معلومات ورکړي او دویمه ډله دې د عباسیانو د راپرځېدلو لاملونه ووایي.

## پوښتنې

۱- په عباسي دولت کې لومړني مخالفتونه څنګه پیل شول؟

۲- د امین او مامون ترمنځ جګړه کې طاهر فوشنجي د چا پلوي وکړه.

۳- د عباسیانو په راپرځېدو کې کوم لاملونه مهم او ټاکونکي وو؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د فوشنجي طاهر په اړه له خپلو مشرانو پوښتنه وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

## د اووم ټولګي د تاریخ د مضمون اصطلاحات

-**اورتون**:د زردشتیانو معبد، هغه ځای دی چې د عبادت لپاره په کې اور بلېږي.

-**اساطیر**: داستانونه، کیسې، ((هغه تاریخ چې پر شفاهي روایاتو او داستانونو ډېره لګوي، همدغسې اساطیري تاریخ بلل کېږي.))

-**سکندریه**: یوناني تم ځای، نظامي عسکري ځای، هغه سیمه چې د یونانیانو او په ځانګړې توګه د سکندر له خوا جوړه شوې وه.

-**ابداعات**: نوي جوړ شوي. نوي بدلونونه. د هغه څه چې پخوا معمول نه وو او په نوې بڼه راڅرګند شي.

-**العیاذ بالله**: پناه وړو د لوی څښتن حضور ته.

-**انصار**: په لغت کې د مرسته کوونکو په معنا دی او په اصطلاح کې د مدینې هغو وګړو ته ویل کېږي چې د مکې له کډوالو سره یې مرسته وکړه او له هغوی سره یې تود هرکلی وکړ.

-**ارتداد**: له دین څخه اوښتنه. هغه کسان چې د اسلام له مبین دین څخه اوښتي وو مرتد وګڼل شول.

-**بودیستوا**: د بودا آئین منونکي

-**جیحون**: د آمو سیند

-**جمل**: اوښ.

-**حجة الوداع**: د حضرت نبي کریم ﷺ وروستنی حج.

-**حماسي**: هېوادني او جنګي شعرونه او داستانونه.

-**خوارج**: هغې ډلې ته به یې ویل چې هغوی د صفین په جګړه کې د حضرت علی کرم الله وجهه او حضرت معاویه رضي الله عنه له حکمیت سره مخالفت کاوه.

-**ماقبل تاریخ**: له تاریخ څخه د مخه.

-**رب النوع**: د انسان له لوري جوړه شوې الهه، بُت.

-**سامانه**: تنظیم کول د آریایانو عمومي جشن لکه: د نوروز جشن او د بزګر جشن.

-**سیحون**: د سیر دریا.

-**هندي عاج**: د هندي پیلانو هغه غاښونه وو چې ظریف آثار ورڅخه جوړېدل.

-**غزوه**: هغې جګړې ته وایي چې حضرت محمد ﷺ په کې برخه اخیستې وه.

- **قلمرو**: جغرافیایي محدوده، د واک لاندې سیمه، د دولتي واکمنۍ حدود او سیاسي واکمني.

- **ډبرلیک**: پر ډبره لیکل شوی مطلب. هغه لیکنه چې په ډبرې کې حک او کیندل شوې وي.

- **گاتها**: د زردشت نصیحتونه یا د سپین تمان پندونه (نصحیتونه).

- **مسکوکات**: د سکو ټولگه، فلزي سیکې.

- **مزج**: یوځای کېدل، گډ کېدل، یو له بل سره یو کېدل د مزج توری او کلمه په تاریخ کې هغو مدنیتونو ته استعمال شوې ده چې سرچینه یې بیله او محصول یې یو ډول وي.

- **مشرکان**: هغه وگړي او کسان چې له لوی څښتن سره شریک مني.

- **وحدانیت**: په یوه او واحد څښتن تعالي باندې ایمان او باور لرل.

- **ویدي**: د آریایانو د سرودونو څلور کتابونه دي چې له ریگویدا، اتهر ویدا، ساما ویدا او ویجورو ویدا څخه جوړ دي. د ویدا او ویدي کلمې د پوهې او تېز هوشۍ په معنا هم کارول شوې ده.